دکابل ګډه وډه اداره او دهیواد راتلونکی!




لسم کال اتمه، پرلپسې ۹۶ یمه، ذی القعده ۱۴۳۷ هق، اګست ۲۰۱۶م



دنیکمرغه لــوی اختر په مناسبت د امیــر المؤمنین

شیخ الحدیث هبة الله اخندزاده (حفظه الله) د مبارکۍ پیغام



جهادي بریاوو دښمن له ماتې سره مخ کړی

وه طالبه ګرانه! پام کومه کابل باندې

ګذر کوتاهی برابعاد عملیات جهادی عمری!

د دفاع وزارت اعترافي استدلال ...!!

ادارهٔ کابل و تحریف حقایق میدانی



ددولت په لیکوکې د تېښتې او تسلیمي څپه تونده شوې

مطبوعاتي جهاد

# مورچل



لسم کال اتمه، پرلپسې ۹۲ یمه ګڼه، ذي القعدة ۱۴۳۷هق اګست ۲۰۱۶م

**علمي، سیاسي او جهادي میاشتینۍ خپرونه**

## لړلیك




**د امتیاز خاوند**

دافغانستان اسلامي امارت
دفرهنګي چارو کمیسیون

**مسؤل مدیر**

شکـــور (شفق)

**کتــنپلاوی**

حسـن خیل
حسـن زوی
زبیر مسافر
ایوب صافی
حکمت بغلانی
حافظ سعید

**تخنیکي چارې**

دفرهنګي کمیسیون تخنیکي څانګه



**مکاتباتي ادرس**

پته: کابل ښار، پنځمه حوزه، دمجلې دفتر
E-mail: baakhtaraf@yahoo.com

سرمقاله



## دکابل ګډه وډه اداره

# او دهیواد راتلونکی!

له شک او تردد پرته امریکایانودهیواد اشغال په کلونوکې زمونږ ولس ته یوه داسې کاواکه اداره او ضعیف النفس واکمن ارمغان کړل، چې نه یوازې زمونږ مسلمان او سوله غوښتې ولس ترې کړیږې، بلکې پخپله دلویدیځ او امریکا طراحان هم نور ددې ناسورپه درملنه نه پوهیږې او نه ورته داسې لابرتوارجوړولای شي، چې ددې انارشیزم ،خپلسری اوملوک الطوایفی ویرسونه او جراثیم پکې تشخیص او معالجه کړي.

دکابل وروستیو پیښو اوتازه تحولاتو هغه څه په ډاګه کړل، چې پکې له ورایه دکابل دګډ وډ اداري بنسټ تزلزل او دعنکبوت (غني )دځالي غوندې نهایي رکاکت او ضعف مشاهده کیږي ،هیواد او پلازمینه کې وروستی اخ وډب ددې شاهدي ورکوي ،چې کابل کې داشغالګرو په ګوتو رغول شوي اداره نوره دشړیدلو په مورګو ولاړه ده اودکومې ښې راتلونکې تمه ترې داسې نشي کیدلای.

دکابل په (شهرآرا)تپې کې د(حبیب الله کلکاني) دجسد پر سر دشوری نظار دټوپکیانواو دزرګونو طالبانواو هیوادوالو د خونکارو قاتلو ګلم جم ملیشوخونړی کړکیچ ،دهیوادپه شمال کې په اصطلاح دجمهوري ریاست دمرستیال کمونست جنرال دوستم بدنامو وسله والولخوا دمیشتو مسلمانو ولسونوځورونه ،ددارګ دسرچارواکې اشرف غني او جنګ سالار عبدالله ترمینځ مطبوعاتي نانډرې ،نیوکې اوګوتځنډنې اوهمداسې اشرف غني ته دارګ دکمونست مرستیال جنرال دوستم داستعفاء ګواښنه اوناندریزې خبرې ،ټول هغه څه دي، چې دکابل دموجوده مسلط نظام ضعف او دچارواکیو ترمینځ دنفاق درځ ترې له ورایه جوتیږې او ددې حدس ځواکمنوي ،چې نږدې راتلونکې به دکابل ارګ په سرو وینو کې لت پت شي.

بل طرف ته اشغالگر امریکایان لګیا دي، دبګرام او خپلو نوروپوځي هډو دتلپاتې مصؤنیت لپاره دمطبوعاتي راپورونو پر بنسټ دتوغندیو ضد دفاعي سیسټم رغوي ،که دیوې خوا دخپل اشغال تداوم غښتلی کوي ،نو دبلې خوا زمونږ ګران افغانستان دچین روس او نورو سیمه ایزو اتومې هیوادونوپرخلاف داتومې جنګ ډګر کرځوي ،شاید اشغالګر امریکایان پدې نظر وي، چې افغانستان به دخپلو شومو موخو په فکر دصنعتي پرمختللیو هیوادونودځپلوپرخلاف دیوې مورچې په حیث وکاروي اوددې کنډواله شوي او جنګ ځپلې هیوادراتلونکی به دسترو صنعتي هیوادونوسره دامریکایانو دوسله وال ټکراوا تومې ګوزارونودچاپان (هیروشیما) وي.

اشغالګر کوشش کوي، چې کابل کې دداسې یوې نا انډوله او ناقراره اداري په شتون کې خپلو شومو هدفونوته دنا مستقیمولارو نه ځان ورسوي، په اصطلاح دترهګرۍ !! په کاذبو شعارونواوبه خړې او دخپلې خوښې کبان پکې ونیسي او دخلکودتجاهل په صورت کې زمونږ بې پرې او ناپییلی هیواد دخپلو ګټولپاره دمنځنۍ آسیا اونوروسیمه ایزو قوتونوپرخلاف دیوې مورچې په بڼه وکاروي اوهم ددې خپلواک هیواد نا ارامې خپلو ګټو ته درسیدو ترنورواسانه لاره غوره کړي.

خو مونږ په پوره باور سره ویلای شو!

چې دافغان مسلمان ولس دارادو اصل استازی حرکت ،هغه دافغانستان اسلامي امارت دی ،او اسلامي امارت به ترپایه دیوه مسؤل او ذمه وار تحریک په توګه هیچاته ددې اجازه ورنکړي، چې دهیواد استقلال او ناپییلتوب زیامن او دابې طرفه هیوادډخپلو ناجایزو ګټولپاره وکاروي.

همدا اسلامي امارت و،چې د(۱۳۷۱او ۱۳۷٦ل )کلونو هیوادني انارشیزم ته یې، هم دسرونو په نذرانو خاتمه ورکړه او بیا همدا اسلامي امارت و،چې د(۲۰۰۱ز)کال غربي یرغل په پیل کې یې ددې مغرضو خارجیانو پر ضد دجهادبهیر تاندا وځپاندو ساته او یوځل به بیا همدا اسلامي امارت وي، چې دخارجیانو ددې ډول دسیسوپه نره مقابله به وکړي او ددوئ ګرد پلانونه به شنډ او خنثی کړي.

افغان ولس او دافغانستان نړیوال خواخوږې دې ډاډه وي، چې داسلامي امارت مدبرانه قیادت او مجاهدین نه یوازې داچې ،داشغالګرو په خلاف په پوځي ډګرونو کې ددوئ مقابله کوي ،بلکې ددوئ هر ې دسیسې ته متوجه او داسلام او هیواد پرضد یې پلانونه څارې، امید دی، چې دوئ به خپلو موخو ته ونه رسیږې او ټول دسایس به یې نطفه کې خنثی شي!



## دنیکمرغه لـوی اختر په مناسبت د امیـر المؤمنین

## شیخ الحدیث هبة الله اخندزاده (حفظه الله) د مبارکۍ پیغام

بسم الله الرحمن الرحیم

الله اکبر، الله اکبر، الله اکبر، لا اله الا الله والله اکبر، الله اکبر و لله الحمد

الحمـد لله الـذي أنعـم علينـا بنعمـةِ الإيمـان والإسلام، حيـث أنـزل علينـا خـيرَ كُتبـه، وأرسـل إلينـا أفضلَ رسُلُه، وشرع لنا أفضلَ شرائـع دينـه، لـه الحمـد كلُّه، وبيده الخير كلُّه، وإليه يُرجع الأمر كلُّه، يخلق مـا يشاء ويختار، ما كان لنا الخِيَرَة، سبحانه له الحمـدُ في الأولى والآخرة، وله الحكم وإليه ترجعـون. وأشـهد أن لا إله إلا الله وحده لا شريك له، وأشـهد أنّ محمـدًا عبـده ورسوله،بلّغ الرسالة، وأدّى الأمانة، ونصح الأمّة، وجاهـد في الله حقّ جهاده،فصلوات ربي وسلامةُ عليـه، وعـلى آله الطيبين الطاهرين، وعـلى أصحابه والتـابعين ومـن تبعهم بإحسان إلى يوم الدين. وبعد:

فقدقال الله تعالی: فصل لربک وانحر. صـدق الله العلی العظیم

مؤمنو هیوادوالو او د نړۍ پـه گـوټ گـوټ کـې دعقیدې وروڼو او خویندو!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته!

په دې هیله چې له صحت، عافیت او سـعادت څخـه بـه بـرخمن یاسـت د نیکمرغـه لـوي اخـتر (عیدالاضحی) مبارکي درته وایـم. الله تعـالی مـو ټـول عبـادات، قربانی،صدقات او د الله تعـالی د رضـا پـه مقصد ترسره کړي اعمال مقبول وګرځوه.

ٓد نیکمرغه لوی اختر د مبارکۍ تر څنګ ټـول مجاهد ولس او په خاص ډول د حق د لارې مجاهدینو تـه د هغـو فتوحـاتو مبـارکي هـم وایـم چـې پـه دې وروسـتیو کـې الله تعـالی پـه خپـل ځـانګړي فضـل او نصرت ، د مجاهدینود قربانۍ او د ولس په مرسته په جهادي صف پیرزو کړې دي او ددښمن د هر ځـومره زور کـارولو، خـارجي پـوځ زیـاتولو او بیلابیلـو الوتکـو د بمبارونو باوجود د هیواد په مختلفـو ولایـاتوکې ډیـرې ولسوالۍ او سیمې ددښمن لـه وجـود څخـه تصـفیه او لله الحمـد د اسلامي امـارت سـپین بیـرغ وربانـدې رپیدلی دی.

مجاهدینو وروڼو! که د اشغال په لومړیـو کلونـو کې زموږ مسؤلیت یوازې ددښمن په وړانـدې قتـال او مقابله وه، مګر اوس چې د هیواد ډیرې سیمې زموږ تر واک لاندې دي، هغه وخت رارسیدلی چـې د پـنځلس کلن جهاد حاصل ترلاسه او جهادي اهداف تأمین کړو. د جهاد سـتر اهـداف د الله تعـالی پـه ځمکـه د الهي شریعت نفاذ، د عدل، اسـتقرار او امنیـت تـأمینول، د سرحـداتو سـاتل او د هیوادوالـو د سر، مـال، عـزت او

ټولو خدای ورکړو حقوقو ساتنه او له هغو څخه دفاع ده.

آد نظامي کميسيون مسؤلين، واليان،د قضايي محاکمو کارکوونکي، د ولايتي کميسيونو غړي، دولسواليو مسؤلين او ډلګۍ مشران دغه راز دټولو ملکي کميسيونونو منسوبين دي په مفتوحه سيمو کې د امنيت او عدالت تأمين، د شريعت نفاذ، ښې حکومتولی، د ديني او عصري معارف ودې او د عام المنفعه کارونو لکه لارو، پلونو، روغتيايي چارو، د څښاک د اوبو، زراعت او تجارت ودې او دغسې نورو رفاهي کارونو ته دي ځانګړې توجه وکړي. څوک چې په دې برخه کې تخريب کوي مخه يې ونيسي ـ ترڅو مو مؤمن اولس د شرعي حاکميت تر سيوري لاندې د روښانه، خوشحاله او بې احتياجه ژوند له سعادت څخه برخمن او د سولې په فضاء کې د ارام ساه واخلي.

آددې لپاره چې مجاهدين په دې ستره آزموينه کې بريالي شي په مشخص ډول بايد دغو ټکو ته په ټينګه پاملرنه وکړي، نيتونه دي خالص لله فی الله وګرځوي، کشران دي که مشران ځانونه دي دتقوی په زينت ښايسته کړي دالله تعالی حمد دي وايې چې دجهاد دمقدسې فريضې توفيق يې ورکړی،عدل دي کوي احسان دي کوي له کبر،غرور، عجب، ظلم، اوخيانت څخه دي ځانونه وساتي ،له قوم پرستي ،منطقه پرستي ،لسان پرستي او انډيوال پرستي څخه دي په کلکه پرهيز وکړي،امتياز بايد په تقوی او امانت داري سره وي،په خپلو منځو کې دي داعتماد او ورور ګلوۍ فضا قايمه کړي ،او له داسي حرکاتو دي ځانونه وساتي چې په خپل منځ کې بې اعتمادي را منځ ته کوي، مجاهدين ورونه دي په خپل منځ کې دامر بالمعروف او نهي عن المنكر فريضه نه پريږدي ،لمونځونه دي په جما عت سره کوي ،په بيت المال کې دي له خيانت نه ځانونه ساتي، دشهيدانواو بنديانودکورنيو او اولا دونو دې ښه کفالت کوي هيڅ کله دې له ياده نه با سي، دخپلوتلليومحبوبواو مهربانه مشرانو(مرحوم اميرالمؤمنين ملامحمدعمر مجاهدرحمه الله اوشهيداميرالمؤمنين ملا اختر محمد منصور رحمه الله) شرعي تګ لاره دي په خپل ټول قوت سره تعقيب کړي ، د مسلمانانو خدمت، د اولس هوساينه او رفاه دې د يوه ديني خدمت په حيث خپل ستر مقصد وبولي. ځکه خلکو ته خير رسول د الله تعالی په نزد يو تر ټولو محبوب عمل دی . عن ابن عمر رضي الله عنهما، أن النبي صلى الله عليه وسلم قال: أحب الناس إلى الله أنفعهم، وأحب الأعمال إلى الله عز وجل سرور تدخله على مسلم، أو تكشف عنه كربة، أوتقضي عنه ديناً، أوتطرد عنه جوعاً، ولأن أمشي مع أخي المسلم في حاجة أحب إلي من أن أعتكف في المسجد شهراً. رواه الطبرانی.
يعنی: حضرت عبدالله ابن عمر رضی الله عنهما روايت کوي چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: د الله تعالی په نزد محبوب ترين د خلکو هغه څوک دی چې خلکو ته يې ډيره ګټه رسيږي او د الله تعالی په نزد ډېر محبوب عمل دادی چې د يوه مسلمان زړه خوشحاله کړي، يا يې انديښنه رفع کړي،يا د هغه له جانبه د هغه قرض اداء کړي، يا يې لوږه ختمه کړې يعنې ډوډۍ ورکړې او رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي زه چې د يوه مسلمان ورور سره د هغه د حاجت پوره کولو لپاره ولاړ شم يعنی کومک ورسره وکړم دا غوره بولم تردې چې په مسجد ( النبوي) کې يوه مياشت د اعتکاف عبادت وکړم.

مجاهدین ورونه دې د خپلو صفونو تصفیې ته خاص توجه وکړي، بدکاره، بدنام، عیاش،دنیا پرست او بد اخلاقه کسان هغه چې له عامو خلکو سره بد چلند کوي په خپلو صفونوکې دې ځای نه ور کوي ترڅو د اولس د آزار سبب نه شي. مجاهدین دې له علماء کرامو،روحانیونو، قومي متنفذینو او متدینو اهل نظر خلکو سره تعلق جوړ کړي له هغوی دي مشورې وغواړي او له تجربو دې یې ګټه واخلي.عامو مجاهدینو ته دي د نظامي او عسکري تربیې ترڅنګ له مسلمانانو سره دښه چلند، د ملکي تلفاتو دمخنیوي، د عدالت د تأمین او مردمدارۍ په برخه کې هم تربیه ورکړل شي او وخت په وخت دې ورته د دوی د حقوقو او حیثیت ساتنې په برخه کې لازمې لارښوونې کیږي او چې کوم کسان دکابل له فاسدي اداري څخه راوو زي او یا اسیران کیږي مجاهدین دي له هغو سره ښه چلند کوي.

مجاهدینو ورونو ته مې هدایت دادی چې د جهادي عملیاتو سره سره د دعوت او ددښمن په لیکو کې د ولاړو افرادو د جلبولو هڅو ته هم پوره توجه وکړي.په دې برخه کې عامه مجاهدین، د دعوت او ارشاد مسؤلین، د فرهنګي او مطبوعاتي برخې کارکوونکي، دعلم، قلم او ژبي خاوندان ټول باید د اذهانو تنویر او دعوت ته ډیره توجه وکړي. او د خپلو مجاهدینو او نوي نسل د ذهني تربیې ترڅنګ ددښمن په صف کې د ولاړو افرادو لپاره دي داسې پیغامونه نشر کړي چې هغوی د جهادي صف حقانیت او کامیابي درک کړي، له خپل اسلامي او غیرتي تاریخ نه خبر شي، دغلامۍ او محکومیت په تاوانونو پوه شي او د یرغلګرو په لښکر کې پاته کیدل ورته د یوه زیانبار او هلاکوونکي عمل په حیث وښودل شي.

د نړۍ په ګوټ ګوټ کې هغه اهل خیر کسان چې له اسلامي امارت سره یې مرسته کړې اویا دې جهادي صف ته اعتقاد لري ، هغه علماء کرام او لیکوالان چې زموږ ددعیې تأیید او ملاتړ یې کړی، له موږ سره یې همیشه خپلې نیکې مشورې شریکې او خواخوږي څرګنده کړې او په خاص ډول په تیره موده کې یې د مرحوم امیرالمؤمنین ملا محمدعمر مجاهدرحمه الله د وفات او دامیرالمؤمنین ملا اختر محمد منصور رحمه الله د شهادت دواقعو په مهال له موږ سره غمرازي کړې، موږ ترې مننه کوو او د الله تعالی څخه ورته ددې اخلاص پوره پوره اجرونه غواړو.

د نیکمرغه لوی اختر له دې مناسبت نه په استفاده یوځل بیا په ټولو هغو افغانانو غږ کوم چې د بهرنیو اشغالګرو سره په نظامي او ملکي برخو کې کار کوي،چې دوی دي یوه شیبه په خپل موقف له سره غور وکړي،دوی باید پوه شي چې په افغانستان د امریکا او متحدینو برید د اسلامي امت په وړاندې د کفارو د نړیوالې جګړې یوه برخه ده چې عمده هدف یي د واقعي اسلامي نظام له منځه وړل، پرځای یې خپل تربیه شوي غلامان قدرت ته رسول او په دې اسلامي خاوره کې د خپلو اسلام ضد قوانینو، افکارو، عقائدو او رسومو خپرول او ترویج دی؛ نو دوی باید د خپل دې خطرناک موقعیت په باره کې چې د اشغالګرو د جنګي صف ملګري دي ژور فکر وکړي، له محاربو کفارو سره ددوی ملګرتیا له شک پرته د الله تعالی او د هغه د رسول صلی الله علیه وسلم له اوامرو څرګند مخالفت دی. الله تعالی فرمایي:فلیحذر الذین یخالفون عن أمره أن تصیبهم فتنة أو یصیبهم

عذاب أليم. النـور ٦٣. ژبـاړه: ( نـو هغـه څـوک چـې د رسول الله صلی الله علیه وسلم له امر نه مخالفت کوي له دې دي وویرېږي چې فتنه به ورته ورسیږي او یابـه دردناک عذاب ورته ورسیږي).

اسلامي هیوادونو او د نـړۍ آزادي پـالو اولسـونو ته مو پیغام دادی چې زمـوږ مبـارزه کومـه نامشرـوعه جګړه یا په ناروا اغراضو بنا بغاوت نه دی اونه هـم لـه شرعي فتوا پرته محض دجذباتو ښکاره کول دي؛ بلکې زموږ په هیواد یرغل شوی او زموږ د اولس د دین، فکر او استقلال خوښوونکي مزاج په خلاف یـو اسـلام ضـد، پردیپال او ګوډاګی نظام د ټانګ، توپ او طیـارې پـه زور زموږ په هیواد تپـل شـوی دی.اسلامي نظـام او د هیواد ازادي زموږ دینـي او انسـاني حـق دی. اسلامي هیوادونـه او د نـړۍ ازاد اولسـونه دخپلـې وجیبـې پـه اساس باید زموږ ددغې برحقې داعیې ملاتـړ وکـړي او زموږ د مظلوم اولس په ملاتړ سره خپل ځان ته متوجه مسؤلیت اداء کـړي. اسـلامي امـارت د افغانسـتان د مسئلې د حل لپاره د نظامي تګلارې ترڅنـګ سـیاسي هلې ځلې هم جاري ساتلي دي او ددې لپـاره دنړیوالـو او نورو جهتونوسره د اړیکو پخاطر سیاسي دفـتر ټاکـل شوي دی. مونږ غواړو له نړیوالو سره اړیکـي ولـرو او زموږ په اړه ورسره شته پوښتنې او تشویشـونه یـې رفـع کړو، ترڅو په راتلونکي کې خپل هیواد دنـورو لـه ضرر څخه وساتو اوهم زموږ له هیواد څخه نـورو تـه ضرر ونه رسیږي.

دنړۍ په زیاتره برخو کې چې په مسـلمانانو ډول ډول مظالم کیږي خصوصا په سوریه کې په یـوه او بـل نامه په عامو مسلمانانو بمونه اوري د ولـس کورونـه ، مساجد،صـحي او تعلیمـي مـرا کـز یـې لـه خـاورو سره خاوري کیږي موږ دا ډول ظلمونه په کلکو ټکو غنـدو او په ټوله نړۍ کې دویښ ضمیر په خاوندانو غـږ کـوو چې دداډول مظـالمو پـه مخنیـوي کـې دي اواز پورتـه کړي دا بې انصافي او بې پوښتني ظلمونه چـې نـن پـه مستضعفو اولسونو روان دي که یې مخه ونه نیول شي نو تاوان یې ټولو ته رسـیږي ځکـه لـه یـوې خـوا ظـالم خپلو ظلمونو او دزور اسـتعمال تـه دوام ورکـوي او لـه بلې خوا مظلـوم دخپـل مظلـو میـت نـه د خلاصـون او انتقـام پـه موخـه هـري وسـیلې او عمـل تـه لاس اوږ دوي چې په نتیجه کې دنړۍ امن نور هم ور سره خرا بیږي .

په پای کې له ټولو شتمنو او اهل خیرو وروڼـو او خویندو نه غوښـتنه کـوم چـي داخـتر پـه دې مبـارکو شپو ورځو کې دشـهیدانو کـورنۍ، بنـدیان او دهغـوی کورنۍ، معیـوبین ، یتـیمان او دحـق دسـنګر سـاتونکو مجاهدینو کورنۍ او اولادونه هم پـه خپلـو خوشـحالیو کې ورسره شریک کړي او دخپل وس په اندازه مرستي ورسره وکړي.

نور مو په متعال او ساتونکي رب تعالی سـپارم .
والسلام

داسلامی امارت زعیم امیرالمؤ منین شیخ الحدیث هبة الله اخند زاده

۷/۱۲/۱۴۳۷ ه ق

۱۹/٦/۱۳۹۵ ه ش

۹/۹/۲۰۱٦ م

شاهد غزنیوال

# جهادي بریاوو دښمن له ماتې سره مخ کړی

له تیرو نیږدي دوو میاشتو څخه له هلمنده نیولې تر ننګرهار، کندوز، پکتیا، کابل فراه او... پوري مجاهدینو د پام وړ پرمختګونه کړي .

په هلمند کې یې د یوشمیر ولسوالیو تر نیولو وروسته پر لښکرګاه مرکز باندې د محاصرې کړۍ تنګه کړې ، همداشان په کندوز او تخار کې د یوشمیر استراتیژیکو سیمو تر لاندې کولو وروسته اوس د کندوز ښار د فتحه کولو لپاره شیبې شمیرې .

په پکتیا کې د جاني خیلود مهمې ولسوالی فتحه کول او هلته د بې شمیره مهماتو تر لاسه کول په ټول جنوب ختیځ کې د دښمن پاتې ځواکونه له ویرې او وارخطایي سره مخ کړي .

په مجموع کې د هیواد په ختیځ او لویدیځ کې د مجاهدینو دا پرمختګونه د دې لامل شوي، چې ماتې خوړلی دښمن نورهم له شکست سره مخ او له مجاهدینو سره د مخامخ کیدو وړتیا له لاسه ورکړي .

د ګډ حکومت ترمنځ د دغو اختلافاتو اساسي لامل په پوځي برخې کې د مجاهدینو پرمختګ دی ،چې د دښمن مورال یې سخت ځپلی او له هغوی څخه یې د مجاهدینو په مقابل کې د مقاومت وړتیا اخیستې ده.

همدا راز په پوځي ساحه کې د مجاهدینو فتوحات او لاسته راوړنې د دښمن په لیکو کې د داخلي اختلافاتو او بې باوریو لامل شوي .

همدا اوس لیدل کیږي، چې د ګډ حکومت سهیم لوري د سختو داخلي اختلافاتو ښکار او د امریکایانو په شمول یې ټول بهرني باداران له حل کولو څخه ناتوانه دي .

د اشرف غني نږدي متحد او د پوځي ډګر وحشي جنرال دوستم له خپلو ټولو وحشتونو او مظالمو سره ونه توانید، چې په شمال کې د مجاهدینو د فوځي فعالیتونو مخه ونیسي ، هماغه ده چې په ډیرې مایوسی سره په ګډ حکومت کې له خپلې دندې څخه بیزاره او له خپلو پلویانو نه له حکومت څخه د وتلو په باره کې مشورې غواړي .



د مجاهدینو دغې دښمن ځپونکي بریا نه یواځې د کډ حکومت چارواکي له وارخطایي سره مخ کړي ؛ بلکې پرهغوی سربیره یې د دوئ خارجي باداران هم د حکومت پر کړنو او وړتیا باندې بې باوره کړي او هره ورځ یې د مجاهدینو په مقابل کې د ناکامیو او فضیحتونو رپوټونه خپروي .

په کابل کې د اروپایي اتحاد سفیر وایي، چې په کډ حکومت کې د جنرالی رتبه د پوځي او اداري صلاحیت له وجې نه ؛ بلکې د پیسو د کځورو په عوض کې تر لاسه کیږي ، او همدا وجه ده چې د حکومت او پوځ لوړ رتبه جنرالان د جګړې په لیکو کې د طالبانو د مقاومت توان نه لري .

همدا راز په افغانستان کې د ناتو عمومي قوماندان جنرال جان نیکولسن په یوې میاشتې کې په هلمند او کندز کې تر ۹۰۰ د زیاتو داخلي ځواکونو پر وژل کیدو او دهغوي پر ناکامي اعتراف کوي .

د کډ حکومت له موجودو کډوډیو او د هغوئ د خارجي حامیانو له اعترافونو څخه ښکاري ،چې پرهغوئ باندې د مجاهدینو کاري ګوزارونو په پوځي او امنیتي لحاظ هغوئ له شکست سره مخ کړي ، د مجاهدینو د مقابلې توان یې کمزوری شوی او له خپل ځان څخه د دفاع ابتکار یې له لاسه ورکړی.

هماغه ده چې خپله بقاء د ولسي خلکو په وژنه کې ویني او د خارجي ځواکونو تر بمباری لاندې خپلې واکمنی ته دوام ورکوي .

ان شاء الله هغه وخت لیری نه دی، چې خارجي یرغلګر به هم د دوئ د داخلي مزدورانو په څیر د افغان مجاهد ولس په مقابل کې له شکست او ناکامی سره مخ کیږي ، افغانستان به تري آزادیږي او افغانان به د اسلامي نظام تر سیوري لاندې له هوسا او آرام ژوند څخه برخمن کیږي .

ان شاء الله ...

وماذلک علی الله بعزیز

دهماغې ورځې د رارسیدو په هیله

# وه طالـبه ګـرانه! پام کـومه کابل بانـدې

حبيب مجاهد

کابل يو ځل بيا د تنظيمي هرج و مرج دوران ته ستون شوی دی، دا د سنبلې ۱۱ مه د پنجشنبې ورځ ده، د کابل ښار په زړه کې د شهرآرا تاريخي سيمه د جګړه مارانو د يوه شوم او بدمرغه تقابل په منځ کې راګير ده.

د شورای نظار ټوپکيان چې پکولونـه يـې کـاږه ايښـي، راکـټ لانچرې يې له تخرګو ايستلې،پايڅې يې لوړې بـډ وهـلي، د چرسـو او سيګرټو لوخړې باسي په ساده جامو ملبس پـه دولتـي رينجـرو کـې سپاره د د کابل ښار په کوڅو کې منډې رامنډې وهي. دوی هڅه کـوي هغه هډوکي چې د مرنجان غونډې له يوې زړې هديرې يې را ايستلې او اوس يې ورباندې د امير حبيب الله کلکـاني د جسـد نـوم ايښـی دی د شهرآرا په تاريخي غونډۍ باندې ښخ کړي.

بله خوا د جنرال دوستم وسلوال دي، اوربوزونه يې ترلې، پلنګـي کوټونو يې اغوستي او لـه سـپکو وسـلو سره يـې د شـهرآرا پـه تپـه سنګرونه نيولي، دوی د شورای نظار د کسانو په طـرف ډزې کـوي. د شهرآرا تپه د تعصبي جګړې په ډګر اوښتې،يوې خوا ته دوسـتمي ګلـم جمانو سنګرونه نيولې او بل اړخ ته د ګل حيدر، امان الله ګذر او نوررو په شان د شورای نظار لنډه غر د جنګ او تعرض سرېنده غـړوي، بـې وسه کابليان لکه ترهيدلي مارغان په ډار ، په حيرت او په هيښنو سترګو د تنظيمي لنډغرو ددې غوبل ننداره کوي.

د کابليانو په ذهن کې يو ځل بيا د دوو لسـيزو پخـوا حالـت غځـونې کوي،هغه مهال چې دوستم او مسعود به د مرنجان او بالاحصار په تپو سره زورونه ازمويل، د يوه بل په ضد به يې خونړي عمليات کول او تر منځ به يـې د کابل ښاريان د خپلې بـې رحمـه او جاهلانه جګړې په لمبو کې سوځول.

په دې ورځ د کابل صـحنه کـټ مټ د نوييمو کلونو په څېر ده، تـاريخ يو ځـل بيـا پـه شـا تللـی او د کابـل ښاريانو په اذهانو کې يې ددې ښـار دتـاريخ د تـر ټولـو بدمرغـه شـيبو خـاطرات را تانـد کـړي دي. کابـل ښاريان چې د احالت ويني نو د واکمن نظـام، دموکراتيـک جمهوريـت او منتخب حکومت پـه نـوم تـش او بـې محتوا عناوين ورته هسې غولـوونکي تبليغات ايسي، ځکه په سـترګو وينـي

چې دلته نه حکومت شته او نه هم مسؤل امنیتي چارواکي.دلته واک ټول د هغو لنډغرو په لاس کې دی چې هره شیبه کولای شي د هیوادوالو ژوند او عزت له ګواښ سره مخامخ کړي. دلته د ګل حیدر ، دوستم او ممتاز ملیشې له حکومتي عسکرو زیات صلاحیت او قدرت لري.

نو ځکه ددې اندیښمنوونکي وضعیت له امله عام اولس یو ځل بیا د یوه داسې ملي پاڅون ارمان او تمنا کوي چې دغه د پردیو ګوډاګیان او ټوپکي لنډغران د تیر په څیر د هیواد له پاکې خاورې جارو او د کولاب او تاشکند په پټنځایونو یې وسپاري.

د لنډغرو ټوپکیانو په منځ کې ګیر اولس یوه خوا بله خوا د حیرت سترګې اړوي، هیڅوک په نظر نه ورځي پرته له هماغه نجات بخش متدین او مجاهد قشرـ څخه چې تیر ځل یې د ټوپکیانو د سرکوبولو حماسه د تاریخ په پاڼو سرمشق کړې وه.

هوکې، محکوم ، مجبور او بې وسه ولس یو ځل بیا د طالب ارمان کوي، هغه طالب چې د ټوپکیانو، پاټکیانو، غلو، داړه مارانو او د ملي وحدت ددښمنانو لپاره یو داسې الهي ګُرز دی چې تردې پخوا یې هم د ټوپکي هرج و مرج طلسم مات کړی او د هغوی د کرغیړن حاکمیت ټغر یې ورټول کړی و.

ولس د حال په ژبه یو ځل بیا هماغه پرونۍ ترانه زمزمه کوي او په غریو نیولي غږ وایي:

واخله ذوالفقار لاس کې سپور شه په دلدل باندې

وه طالبه ګرانه پام کوه کابل باندې

هو کې طالب جانه! د هیواد حالت یو ځل بیا تر ټولو حساس ټاپي ته پورته شوی. هیواد یو ځل بیا د شړیدلو، سرتاسري لوټ تالان، تعصبي جګړو او عامه فساد او هرج و مرج له خطر سره مخامخ دی. د غرب ګوډاګیان چې څو کاله یې په دریشیو او پتلونونو کې د دموکراسۍ تمثیل وکړ اوس یو ځل بیا خپل اصل ته ستانه شوي، دوی یو ځل بیا هماغه بدمرغه جوسې رابرسیره کړې او له هماغه شعارونو او معیارونو سره د اولس وژونکې فتنې د اور بلولو ته راوړاندې شوي دي.

نو طالب جانه!

د اولس سترګې یو ځل بیا ستا په لور کږې دي، نو خپل عزم راسخ کړه، په الله توکل وکړه، او د خپل مؤمن اولس د هوساینې او دفاع په لاره کې یو ځل بیا داسې کارنامه ترسره کړه لکه تیر ځل دې چې د متحد او اسلامي افغانستان بقاء تضمین او اولس دې د ټوپکیان له آذیت څخه خلاص کړ.

په همدې هیله

# ادارۀ کابل و تحـــریف حقایق میدانی

ابوصهیب حقانی

آنچــه کــه ایــن روزهــا همــه شــاهد آننــد ،پیشرفت ها و پیروزی های بی وقفۀ مجاهـدین اند، که لله الحمد به فضل و مرحمت الله تبـارک و تعـالی، حمایـت ملـت مجاهـد و همـت و غیـرت فرزندان دلیر اسلام (مجاهدین قهرمـان) دامنـۀ فتوحـات را تـا دروازه شـهرهای مرکـزی ولایـات رسانده اند، و شهرهای مهم و مراکز ولایت ها را در حلقـۀ محـاصره خـویش در آورده ،و روز بـه روز آن حلقــه نیــز تنــگ تــر شــده و نیروهــای وابسته به اشغالگران بـا آنکـه از حمایـت کـافی نظـامی (زمینـی و هـوایی) از سـوی بـاداران خـود برخورداراند؛ ولی بازهم به شکست مواجه شده و هـر روزشـان بـدتر از روز گذشـتۀ شـان مـی شود.

در حالیکـــه حقـــایق میـــدانی حـــاکی از پیشرفت های کـم نظیـر مجاهـدین در شـمال و جنوب و بلکه در اقصی نقاط افغانسـتان اسـت و روزانه بخاطر خلق حماسـه هـای افتخـار آفـرین، اخبار و رویدادهای امنیتی افغانسـتان در صـدر رسانه ها و محافـل خـبری قـرار داشـته و مـردم دنیـا بطـور عاجـل اخبـار افغانسـتان را رصـد مـی کنند؛ اما متاسـفانه اداره کابـل بـا اخـلاق زشـت خود ضد آزادی بیان و آزاد گذاشتن رسانه هـا و بـا اسـتفادۀ ابـزاری از افـراد و ژورنالیسـت هـای غیر حرفه ای، حقایق میـدانی را تحریـف کـرده و از طریـق رسـانه هـا عومـا چیـزی را در ذهـن و فکر مردم تبلیغ می کنـد کـه کـاملا در تضـاد بـا واقعیت ها بـوده و بـدور از حقیقـت مـی باشـد؛ ادارۀ کابـل بـه جـای قبـول ضـعف هـا، فسـادها، شکست ها، تلفات و آنچه که حقیقتا در میـدان های جنگی با آن مواجـه اسـت متاسـفانه رسـانه هـا را بلنـدگوهای دروغگـویی شـان قـرار داده و کاملا برعکس به مردم خبر رسانی می کنند.

مثل همیشه قصـد ادارۀ کابـل از ایـن کـار دو چیز می باشد، یکی روحیـه دادن بـه عسـاکر خود در میـدان هـای نـبرد و همینطـور بـه ملـت خوش باور (که بعضا فریـب دورغ هـای حکومـت را خـورده و یـا میخورنـد) و دوم مقتـدر نشـان دادن خود برای حامیـان بـین المللـی اش، جهـت جلب توجه و کمک های بیشتر مادی و معنوی از سوی آنها، تا کماکان با چاپلوسـی و نیرنـگ تنـور جنگ افغانستان را به نفع اربابـان خـویش گـرم نگاه دارد؛ در حالیکه حقیقتا ادارۀ کابل حتی در همین دو مـورد جـز خـود کسـی دیگـر را فریـب داده نمی تواند؛ چرا که اینـک هـم عسـاکر میدان جنگ، هم عموم ملت و هـم حامیـان خـارجی آن،

به ضعف و ناتوانی، بی کفایتی و فساد ادارهٔ کابـل کـاملا اطمینـان داشـته و عاقبـت سـیاه و تاریـک آن ادارهٔ فاقـد صـلاحیت را خـوب مـی فهمنـد؛ ولـی از آنجـا کـه خـارجی هـا تمـام دسـت آوردشان در افغانسـتان ایجـاد همـین ادارهٔ بی کفایت و بـی صـلاحیت بـوده اسـت دل شان نمی آیـد کـه بـه آسانی آن را دست تنها رهـا کنند چون شکست ادارهٔ کابل به معنی شکست یک اداره نیست بلکه شکست قطعی ادارهٔ کابل به معنای شکسـت تمـام تـلاش هـای اسـتکبار و تجاوز غـرب و امریکـا بـه افغانسـتان تعبیـر مـی شود؛ و آنهـا هرگـز چنـین چیـزی را تحمـل کـرده نمی توانند؛ گرچـه مجبوراند کـه بـالاخره قبـول و تحمل کنند.

لذا تحریف حقایق میـدانی کـه شـورای بـه اصطلاح امنیت ادارهٔ کابل این روزهـا در اولویـت کاری خویش قرار داده نه اینکه هـیچ نفعـی بـه حـال آن اداره نمـی کنـد بلکـه هنـوز بیشـتر موجبـات رسـوایی و افتضـاح بـرای ادارهٔ کابـل و حامیـان بـین المللـی اش مـی شـود؛ وقتـی ادارهٔ کابـل در رسـانه هـای خـود جـار بزنـد کـه مـثلا طالبان کیلومترها از فلان ولسـوالی و مرکـز شـهر فاصـله دارنـد و مـردم حـاضر در صـحنه شـاهد حـال باشـند و طالبـان را در مرکـز شـهر و یـا ولسوالی ببینید اگر یک چشم مـردم بـه رسـانه های تحت امـر ادارهٔ کابـل باشـد و چشـم دیگـر شان بر حضـور فیزیکـی طالبـان در منطقـه، چـه گـمان مـی شـود آیـا دیگـر کسـی دروغ هـای شـاخدار ادارهٔ کابـل و حـرف هـای رسـانه هـای



زرخرید آن را قبول کرده و بر اخبار شان اعـتماد می کنند؟

هرگز نه، چونکـه الله سـبحانه و تعـالی بـه ملت عقل، هوش، گـوش و هـواس داده اسـت و آنهـا بـا عـین الیقـین خـود شـاهد پیـروزی هـای شکوهمندانهٔ مجاهدین در منطقه خود و دیگـر کنج و کنار افغانستان می باشند؛ پس جای هیچ دروغ پردازی برای ادارهٔ کابل بـاقی نمـی مانـد و ادارهٔ کابل جز آنکه خود را خسـته کنـد و دسـت خـود را سـیاه کـرده بـه روی خـود بمالـد دیگـر هیچگونه نفع و بهرهٔ از تحریـف حقـایق میـدانی نخواهد برد.

واقعیـت ایـن اسـت کـه الله متعـال وقتـی خواسـته باشـد نظامش را بـر زمـین حـاکم کنـد اسـباب فـتح و پیـروزی بنـدگان صـالح خـود را مسـاعد مـی سـازد و همینطـور وقتـی ارادهٔ الله رفته باشد باطلی را از روی زمین برچینـد اسباب ذلـت و رسوایی و خـتم آن را نیـز توسـط هـمان بندگان صالح و شـجاع، و هـم توسـط خـود اهـل باطل مساعد می کند؛ که ادارهٔ کابل یـک نمونـه ای عملی است که این روزها دچار مقدرات الهـی شـده و بـه شکسـت قطعـی و نهـایی خـویش رسیده است. ان شاء الله تعالی

به امید آن روز!

# آیا دین را کنار گذاشتن مدرنیسم است؟

استاد صهیب رؤفی

اروپا در مدت زمانی که رجال دین بر آن چیره گردیده بودند با عقب مانده گی، جهالت، دگم اندیشی و محدودیت دسته و پنجه نرم می کرد. آن گاه که دین اش را طرد کرد، پیشرفت نمود، دانش آموخت، متمدن گردید و فضای بسته اش دامن گسترانید و باز شد..

این یک حقیقت تاریخی است که جای هیچ مجادله در آن نیست...

اما عوامل متعددی دست به دست هم داد و به خیزش سترگی انجامید. اروپا در عرصه های مختلف نیروی علمی، اقتصادی، نظامی و سیاسی فراهم آورد و پله های صعود را درنوردید.. این دگرگونی های سترگ، هنگامی رخ داد که اروپا دین را از ساحت زندگی خود طرد کرد. و بدین سان، در ضمیر نا خودآگاه آن هر نوع پیشرفت با دور انداختن دین پیوند خورد. دین علت العلل تمام عقب ماندگی ها شد. لذا راهی برای بازگشت به دین باقی نماند، چون به معنای شتاب از نور به سوی ظلمت می نمود و عاقلانه نبود.

شعور و احساس این انسان اروپائی آکنده از حقایق و پندارها بود؛ برخی حقیقت و عده ای نیز پندارهایی ناشی از رویدادها و اتفاقات دورهٔ رنسانس بود. و به طور قطع، مقدمات و نتیجه محسوب نمی گردد تا چیزی را به اثبات رساند؛ اما در فضای گرمی که علیه دین و کلیسا در رنسانس همراه بود، چه در حالت منفی یا مثبت آن شکل علت و نتیجه را به خود گرفت. بدین معنا که دین علت هر مصیبت است و رهایی از دین سبب هر کامیابی!

وضعیت کلیسا و رجال دین آن در قرون وسطای تاریک اروپا چنان بود که قبلا بدان پرداختیم. منابع اروپایی نیز از حوادث هولناک آن آکنده است. اما اولین اشتباه در اندیشهٔ اروپا این بود که دین را به حیث آن که دین است، علت العلل و اساس مصیب های خود پنداشت. در حالی که تجربهٔ اسلامی در اندلس و دیگر سرزمین های اسلامی در برابر اروپا قرار داشت، و همین تجربه برای شناخت حقیقت کافی بود تا اروپا بداند که اساس این مصیبت ها دین نیست. بلکه رویکرد کلیسایی از دین و استفاده از آن است.

اگر ما به این پدیده با دیدهٔ عقلگرا بنگریم؛ که اروپا در آن زمان ادعای آن را داشت؛ موضع اروپا در این قضیه کاملا احساساتی و دور از عقل و خرد به نظر می رسد، و بی گمان، حمله های سرسختانه کلیسا علیه اسلام، به هیچ عنوان برای اروپا عذر پنداشته نمی شود، که این حقیقت از ذهن انسان اروپایی دور بماند.

چنانچه در گذشته گفتیم، با کشف قانون سببیت توسط نیوتن، در شعور انسان اروپایی دشمنی دین افزایش یافت، و نتیجه آن شد که علم و دانش می تواند جانشین درست دین شود، و سبب پیشرفت و تقدم جامعهٔ بشری گردد.

این یک پندار جدید بر پندارهای نهضت بدون بصیرت رنسانس اروپا بود. و آنچنان که بیان کردیم، تجربهٔ اسلامی در برابر اروپا قرار داشت و این نیز هویدا بود که میان دین و علم تضادی نیست؛ بلکه دین انگیزه دهنده و محرک اصلی علم بود.

هجوم شدیدی که کلیسا علیه دانشمندان قائل به کرویت زمین آورد، نیز هیچ گاه دلیلی برای غیاب این حقیقت از ذهن اروپا نمی باشد. انسان روشنفکر و عقل گرا در بند احساسات خویش نمی افتد که حقایق را فراموش کند، و نه هم در برابر حقایق، رفتار احساساتی نماید. کشف قانون سببیت دانشمندی چون «برنتون» را واداشت که بگوید: « قانون سببیت همه آنچه را خرافه ها، الهامات و باورهای باطل (باورهای دینی) در این جهان بنیان گذاشته بود، ویران کرد.» (منشأ الفكر الحديث، ترجمه عبد الرحمن مراد، ص ۱۵۱ طبع عربی)

در همان صفحه می افزاید » :خدا در رسم نیوتن به سازندهٔ ساعت می ماند. اما سازندهٔ این ساعت هستی (جهان هستی)، طناب آن را برای همیشه بسته است، و می تواند تا ابد کار کند. اما مردان را در زمین به عنوان اجزای این ابزار بزرگ چنان ساخته تا بر آن حرکت نمایند. و چنان دانسته می شود که هیچ سودی نیست که نمازی برای این سازندهٔ ساعت بزرگ جهان هستی به جا آورد، سازنده ای که اگر بخواهد در کار او تصرف نتواند!!«.

و در همین کتاب گفته است: « مذهب عقلگرا به سوی از بین بردن خدا و جهان ماوراء الطبیعه حرکت می کند. رشد معرفت علمی و افزایش استخدام درست روش های علمی با رشد وضعیت عقلی پیرامون جهان هستی پیوند مستحکم دارد» (سابق.(۱۰۳ :

این ها حماقت هایی بیش نیست!..

}إِنَّ اللَّهَ يُمْسِكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ أَنْ تَزُولَا وَلَئِنْ زَالَتَا إِنْ أَمْسَكَهُمَا مِنْ أَحَدٍ مِنْ بَعْدِهِ } [فاطر : ٤١]

ترجمه: خداوند آسمانها و زمین را نگاهداري ميكند و نميگذارد ( از مسير خود ) خارج و نابود شوند . هر گاه ( هم بخواهند از مسير خود ) خارج

و نابود شوند ، جز خدا هيچ كس نمي‌تواند آنهـا را ( در مسير خود ) نگاه و محفوظ دارد.

}يَوْمَ نَطْوِي السَّمَاءَ كَطَيِّ السِّجِلِّ لِلْكُتُبِ كَـمَا بَدَأْنَا أَوَّلَ خَلْقٍ نُعِيدُهُ وَعْدًا عَلَيْنَـا إِنَّـا كُنَّـا فَـاعِلِين} [الأنبياء: ١٠٤[

ترجمه: ( اين امر ) روزي ( تحقّـق مي‌پـذيرد كه ) ما آسمان را درهم مي‌پيچيم به همان صـورت كه طومار نامه‌ها در هم پيچيده مي‌شـود . هـمان گونه كه ) نخستين بار سهل و سـاده ) آفـرينش را سر داديم ، آفرينش را از نو بازگشـت مـي‌دهيم ( و به شكل ديگري زندگي دوباره مي‌بخشيم و مردمان را براي حساب و كتـاب حـاضر مـي‌آوريم ) . ايـن وعده‌اي است كه ما مي‌دهيم ، و ما قطعاً آن را بـه انجام مي‌رسانيم .

}وَمَا كَانَ اللَّهُ لِيُعْجِزَهُ مِنْ شَيْءٍ فِي السَّـمَاوَاتِ وَلَا فِي الْأَرْضِ إِنَّهُ كَانَ عَلِيمًا قَدِيرًا} [فاطر: ٤٤[

ترجمه: هيچ چيزي چه در آسمانها و چـه در زمين خدا را درمانده و ناتوان نخواهد كرد . چرا كه او بســيار فرزانــه و خــيلي قدرتمنــد اســت . الله متعال، آفرینندهٔ این جهان است، هيچ چیـزی او را درمانــده و نــاتوان از تغییــر، باطــل نمــودن و آفرینش دیگری اگر بخواهـد، نمـی کنـد. او کسـی است که اگر بـه چیـزی بگویـد: شـو، مـی شـود. استواری سنت های جهان هستی دلیل نـاتوانی الله از تغییر نیست؛ آن چنان که عقلانیت رنســانس بـا سادگی ابلهانه اش پنداشته است. بلکه ایـن هـمان علاقه رنسانس در فریب و نیرنگ علیه کلیسـا بـود

که با شدت در برابر علم و دانش ایستاد، و اهل علم و دانش را بر آن داشت که خدای کلیسا را رد نمایند که آنان را به نام آن شـکنجه و آزار نمـوده بـود. و برایش چنان وانمود کنند که جهـان هسـتی بـدون خدا نیز می تواند جریان داشته باشد.

ایـن یـک حماقـت احساسـاتی بـود و هـیچ پیوندی با علم ندارد، و نه ارتباطی با عقـل و خـرد. اما بر عصر رنسانس و بعد از آن ـ به جز بر عده ای اندک ـ سایه افکند!

دیگر آن که، کشف قانون سببیت یعنی پـرده برداشتن از اسباب و عللی که در پشت پدیدها است؛ پدیده هایی که ما در طبیعت می بینـیم و شـناخت این اسباب، ایمان به وجود الله آفریننده را لغو نمـی کند. بلکه سنت های الهی را بیان مـی دارد کـه بـر جهان هستی حکمفرما است. و گر نه چـه چیـزی اسباب را واداشته تا به این نتایج منجر گردد؟ و به نتایج دیگری منجر نشده است؟! اگر الله تعالی مـی خواست که اسباب، نتایجی این چنین ندهد، چگونه علم می توانست کاری کند تا به این نتـایج منجـر گـــــــــــــــــــــــــــردد؟

}أَفَرَأَيْتُمْ مَـا تُمْنُـونَ (٥٨) أَأَنْـتُمْ تَخْلُقُونَـهُ أَمْ نَحْـنُ الْخَالِقُونَ (٥٩) نَحْنُ قَدَّرْنَا بَيْنَكُمُ الْمَوْتَ وَمَـا نَحْـنُ بِمَسْبُوقِينَ (٦٠) عَلَى أَنْ نُبَدِّلَ أَمْثَالَكُمْ وَنُنْشِئَكُمْ فِي مَا لَا تَعْلَمُونَ (٦١) وَلَقَدْ عَلِمْتُمُ النَّشْأَةَ الْأُولَى فَلَـوْلَا تَـذَكَّرُونَ (٦٢) أَفَـرَأَيْتُمْ مَـا تَحْرُثُـونَ (٦٣ (أَأَنْـتُمْ تَزْرَعُونَهُ أَمْ نَحْنُ الزَّارِعُونَ (٦٤) لَوْ نَشَـاءُ لَجَعَلْنَـاهُ حُطَامًا فَظَلْتُمْ تَفَكَّهُونَ (٦٥) إِنَّا لَمُغْرَمُونَ (٦٦)بَلْ

نَحْنُ مَحْرُومُونَ (٦٧) أَفَرَأَيْتُمُ الْمَاءَ الَّذِي تَشْرَبُونَ (٦٨) أَأَنْتُمْ أَنْزَلْتُمُوهُ مِنَ الْمُزْنِ أَمْ نَحْنُ الْمُنْزِلُونَ (٦٩) لَوْ نَشَاءُ جَعَلْنَاهُ أُجَاجًا فَلَوْلَا تَشْكُرُونَ (٧٠) أَفَرَأَيْتُمُ النَّارَ الَّتِي تُورُونَ (٧١ (أَأَنْتُمْ أَنْشَأْتُمْ شَجَرَتَهَا أَمْ نَحْنُ الْمُنْشِئُونَ (٧٢ (نَحْنُ جَعَلْنَاهَا تَذْكِرَةً وَمَتَاعًا لِلْمُقْوِينَ (٧٣) فَسَبِّحْ بِاسْمِ رَبِّكَ الْعَظِيمِ} [الواقعة: ٥٨ – ٧٤]

ترجمه: آيا درباره نطفه‌اي كه ( به رحم زنان ) مي‌جهانيد ، انديشيده‌ايد و دقت كرده‌ايد ؟ آيا شما آن را مي‌آفرينيد ، و يا ما آن را مي‌آفرينيم ؟ ما در ميان شما مرگ را مقدر و معين ساخته‌ايم ، و هرگز بر ما پيشي گرفته نمي‌شود ( و كسي بر ما چيره نمي‌گردد و از دست ما بدر نمي‌رود ) . هدف ( از قانون مرگ ) اين است كه گروهي از شما را ببريم و گروه ديگري را جاي آنان بياوريم ، و ( سرانجام ( شما را در جهاني كه نمي‌دانيد آفرينش تازه ببخشيم . شما كه پيدايش نخستين ( اين جهان را ديده‌ايد ، و آن را لمس و اوضاع آن را ) دانسته‌ايد ، پس چرا يادآور نمي‌گرديد ( و آفرينش جهان ديگر را بر آفرينش اين جهان قياس نمي‌كنيد ؟ ) . آيا هيچ درباره آنچه كشت مي‌كنيد انديشيده‌ايد ؟ آيا شما آن را مي‌رويانيد ، يا ما مي‌رويانيم ؟ اگر بخواهيم كشتزار را به گياه خشك و پرپر شده‌اي تبديل مي‌گردانيم بگونه‌اي كه شما از آن در شگفت بمانيد . ( حيران و اندوهناك خواهيد گفت : ) ما واقعاً زيانمنديم ! بلكه ما بكلي بي‌نصيب و بي‌بهره ( از رزق و روزي ) هستيم ! ( آخر چيزي براي ما نمانده است و بي‌چيز و بيچاره شده‌ايم ) . آيا هيچ درباره آبي كه مي‌نوشيد انديشيده‌ايد ؟ آيا شما آب را از ابر پائين مي‌آوريد ، يا ما آن را فرود مي‌آوريم ؟ اگر ما بخواهيم اين آب ( شيرين و گوارا ) را تلخ و شور مي‌گردانيم . پس چرا نبايد سپاسگزاري كنيد ؟ آيا هيچ درباره آتشي- كه برمي‌افروزيد ، انديشيده‌ايد ؟ آيا شما ، در آغاز اين آتش را پديدار كرده‌ايد ، يا اين كه ما پديدآورندگان آن هستيم ؟ ما آن را وسيله يادآوري ( قدرت خدا ) و وسيله زندگي اقوياء و فقراء نموده‌ايم . حال كه چنين است ، نام پروردگار بزرگوار خود را ورد زبان ساز ( و سپاسگزار نعمتهاي فراوان او باش ، و به ستايش وي بپرداز ) .

}أَمَّنْ هَذَا الَّذِي يَرْزُقُكُمْ إِنْ أَمْسَكَ رِزْقَهُ بَلْ لَجُّوا فِي عُتُوٍّ وَنُفُورٍ} [الملك: ٢١]

ترجمه: يا اين كه چه كسانيند كه اگر خداوند روزي خود را باز دارد بتوانند به شما روزي برسانند ؟ !اصلاً كافران در سركشي- و گريز پافشاري مي‌كنند.

}أَمْ خُلِقُوا مِنْ غَيْرِ شَيْءٍ أَمْ هُمُ الْخَالِقُونَ} [الطور: ٣٥]

ترجمه: آيا ايشان ( همين جوري از عدم سر بر آورده‌اند و ) بدون هيچ گونه خالقي آفريده شده‌اند ؟ و يا اين كه ( خودشان خويشتن را آفريده‌اند)و خودشان آفريدگارند ؟

مسلمانان چندين قرن قبل از اروپائيان دانستند كه اسبابی در پی وقوع اشياء وجود دارد،

اما سبب کفرشان به الله نگردید. و نه هم علم را بر جای دین نشاندند. چرا که آنان فهمیده بودند که آن که اسباب را آفریده نیز الله است. و به گونه ای کـه جریان دارد، آن را به راه انداخته است. لـذا معرفـت اسباب بر ایمان و نزدیکی آنان به الله افزود و آنان را از الله دور نکرد:

}إِنَّمَا يَخْشَى اللَّهَ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمَاءُ} [فـاطر: ۲۸ [ترجمه: تنها بندگان دانا و دانشـمند ، از خـدا ، ترس آمیخته با تعظیم دارند.

و چنان فهمیدند که اسباب به خـودی خـود، بدین گونه جریان ندارد، بلکه آن نیز جریان دهنـده ای دارد کـه آن را بـه جریـان درآورده اسـت: }رَبُّنَا الَّذِي أَعْطَى كُلَّ شَيْءٍ خَلْقَهُ ثُمَّ هَدَى} [طـه: ۵۰]

ترجمه: پروردگار ما آن کسي اسـت کـه هـر چيزي را وجود بخشيده است و سپس ) در راستاي آن چيزي که براي آن آفريده شده است ) رهنمودش کرده است.

الله تعالی را پرستش نمودند. بـر عبـادت وی چنگ زده، دروازه هـای علـم و دانـش را گشـودند. رازهای جهان هستی را پرده برداشتند. سنت هـای الهی را شناختند. در رشد و شگوفایی دانش کیمیا، فیزیک، هستی شناسی، طبابت و دیگـر علـوم بـا همگونی کامل علم عقیده و فضای مسـالمت آمیـز دین نقش بسزایی انجام دادند .

اما رشد علم و دانش در اروپا بر عکس بـود. هر اندازه که اروپائیان علم افزودند به همان پیمانه از دین دور شدند!.

سپس رویدادهای دیگری در زندگی اروپـا رخ داد که به دیـن پشـت پـای بیشـتر زدنـد و آن را از جریان زندگی دور تر کردند.

انقلاب فرانسه سر رسـید. در پـی آن انقـلاب صنعتی رخ داد. وآنگاه انقلاب داروینی پدیدار شد. و بـه انقـلاب ارتباطـات و معلومـات انجامیـد! هر کدام آن، موجی سرسام آور بود، که مـردم را از ساحل دین دور می کرد و بر انزجار آنان از دین می افزود.

اما انقلاب فرانسه، که یهودیـان مـی گوینـد آنان آتش آن را برافروختند ( بدون تردیـد نهادهـای ماسونی در فرانسه در آن زمان نقش عمـده ای در شعله ور شدنش داشت.) پیام داد: که می خـواهیم آخرین پادشاه را با روده های آخرین کشیش به دار آویزیم.

این مقال، گنجایش بیان رویدادهای انقـلاب فرانسه، ابهامات و جریانات آن را ندارد. اما با نگاه گذرا می توان گفت که دستگاه ماسونی که در آغاز انقـلاب نقشـی بـازی نمـود، توانسـت تـا خشـم روزافزون بر علیه رجال دین کلیسا را به کراهیت از دین مبدل سازد، تیشه بر ریشه دیـن زنـد و آن را از جریان زندگی دور کند. اولین قانون سیکولاری کـه در اروپای مسیحی صادر گردید این بود کـه دولـت نمی تواند بر پایۀ دین شکل گیرد. چنان چه یهودی

را به حیث شهروند اصیل در فرانسه سیکولار به رسمیت شناخت. شعار انقلاب فرانسه نیز قابل تامل است :آزادی، برادری، مساوات، همان شعار فراماسونی ها! و شعار دیگری که یهود در غفلت جماهیر فرانسه آن را برافراشت ,Laissez Faire) : (Laissez Passerبگذار آنچه می خواهد بکند، بگذار از هر جا که می خواهد بگذرد؛ یکی یعنی آزادی شخصی که آزادی الحاد و فساد اخلاقی را در بر می گیرد. و دیگر آزادی سرمایه یعنی در پشت سر گذاشتن همه موانع برای رسیدن به سود.

در این انقلاب بردگان زمین آزاد شدند. پایه های دموکراسی پا بر جا گشت .که خود پیشرفت سترگی محسوب می گردد. چرا که جماهیر دست آوردهای فراوانی که در تصورشان نبود بدست آوردند.. اما این پیشرفت ـ بدون هیچ پیوند درستی ـ به طرد دین نزدیک شد، و احساس اروپا ـ یا توهم آن ـ افزوده گردید که گویا دور ساختن دین از ساحت زندگی، پایه و اساس تقدم و پیشرفت و تحقق انسانیت انسان است.

اما انقلاب صناعتی، در تضاد خود علیه دین بسیار آشکار تر بود. چه در بعد تئوری و چه هم در جریان عملی آن. این را نیز از یاد نبریم که انقلاب صنعتی را یهود با قرض های سودی خویش آغاز نمود. بهروری و منفعت سودی یهود آنان را بر جامعۀ اروپا چیره گرداند. برنامه و طرحی برای فساد جمهور، استعمار و به بند کشیدن آنان ریختند تا مطابق فرامین «تلمود» به خدمت یهود گماشته شوند. ابزارهای بزرگی که در این راستا استفاده نمودند، از یک سو تئوری های مارکس، فروید و دورکایم بود، و از سوی دیگر به بازار کشیدن زن و پخش فساد اخلاقی برخاسته از در آمیختن زن و مرد، ایجاد روابط «پاک» میان زن ومرد، تبدیل این روابط به پیوندهای آزاد از هر قید و بند و «ضابطه» ای که مارکس، فروید و دورکایم توانستند تصویر زشت از آن تقدیم نمایند و به در هم شکستن آن فرا خواندند.

صنعت در سایه این انقلاب بسیار پیشرفت نمود، علم و دانش شگوفا شد، تکنولوژی رشد کرد و خدماتی را برای مردم عرضه نمود که خواب آن را نیز ندیده بودند. این پیشرفت نیز ـ بدون هیچ پیوند درستی ـ با طرد دین از ساحت زندگی نزدیک گردید، و باور انسان اروپایی را بیشتر بر این داشت که دور انداختن دین، اساس و پایه هر تقدم، ترقی و حرکت به سوی تعالی است.

داروین تئوری جدید خود را بر پایۀ مادی و حیوان بودن انسان بنیاد گذارد .یهود آن را گرفته و پخش نمودند، و نیک می دانستند که تاثیر منفی زیادی بر عقیده دارد؛ چرا که طبیعت را به جای خدا می نشاند. آفرینش را به آن نسبت می داد و چنین می پنداشت که خدا در آفرینش وتدبیر امور آن نقشی ندارد. بر علاوه این که پیوند انسان به حیوان؛ هیچ جایی برای دین، اخلاق و ارزش ها نگذاشت.

از گفته های داروین این بود «survival of the fittest» که در نظریه تکامل، داروین به اساس یافته های خود در «تنازع بقا» می گوید که در رقابت موجودات، آن عده باقی می مانند که مطلوبیت بیشتر دارند، بدین معنا که وضعیت جسمی و وظیفوی، بدون در نظر داشت موقعیت آن در نمودار تحول و تکامل، او را در هنگام دگرگونی اوضاع طبیعی سازگار می سازد. و در غیر این صورت، سوسک حمام که از کوچک ترین مخلوقات است، باقی نمی ماند و دایناسور که هزارها مرتبه بزرگتر است، از بین نمی رفت.

اما نظام سرمایه داری سخنان داروین را به راهی دیگر برد و آن را «بقاء برای صالح تر» گرداند. و خود را که بر اوضاع چیره بود، صالح تر پنداشت! و چون سرمایه داری ـ همان یهودیان ـ دشمن دین، اخلاق و سنت ها بودند، «صالح تر «معنای دورتر از دین، اخلاق و سنت شد!.

درست در همین وقت، رویدادهای سیاسی و نظامی بزرگی به خاطر ناتوانی و ضعف جهان اسلام در جهان رخ داد .این رویدادها صلیبیان را فریفته نمود و برای سیطره بر جهان اسلام گسیل داشت؛ سرمایه های شان را به یغما بردند. چور و چپاول استعمار غربی، اروپا را به دارایی های فراوان رسانید و ثروتی بیشمار اندوختند. این سرمایه هایی که به قیمت خون مسلمانان فراهم گردیده بود، در زمان دوری اروپا از دین، سطح اقتصادی و رفاهیت اروپا را بالا برد. و این چنین احساس اروپا افزون گردید که دوری از دین می تواند ثروت و دارایی را نیز جلب نماید و نعمت های زمینی را فراهم کند. ( عده ای شاید به شگفت آیند که چرا حملهٔ استعمار غربی بر جهان اسلام حملهٔ صلیبی باشد، در حالی که دوری مردم از دین را در اروپا با چشم سر می بینند.. در واقعیت امر شگفتی یی در کار نیست؛ اروپا دین خود را کنار گذاشت. از جریان زندگی بدور انداخت. اما کینه و عداوت خود را با اسلام از یاد نبرد .. این کینه ارتباطی با دین نداشت؛ اگر چه در گذشته از دین سرچشمه می گرفت(.

و بالاخره انقلاب ارتباطات و معلومات به سردمداری یهود سر رسید. تجربه ای که در تاریخ بی سابقه بود؛ از یک طرف مردم را از گذر شبکه های ماهواره ای در لجنزاری از پلیدی غرق کرده و از سویی دیگر برای انسان خدمات شگفت انگیزی عرضه نمود که در عقل نمی گنجد. پیشرفت علم و تکنولوژی فوق العاده با فساد اخلاقی گسترده هر دو با هم جمع شدند. با وجودی که هیچ یک با دیگری پیوندی ندارد، دوباره مردم چنین پنداشتند که پیشرفت همه جانبه به غیر از دور انداختن دین، راه دیگری ندارد.

این است، داستان مدرنیسم در اروپا .. فرازهای بلند و نشیب های مرگ بار!

ادامه دارد........

## د دفاع وزارت اعترافي

# استدلال ...!!

موسی فرهاد

د رسنیو خبر :

افغانستان کې د ناټو ځواکونو مرستیال وياند چارلس کليفلنډ پرون وويل چې تېر و اتو مياشتو کې د افغان امنيتي ځواکونو له ۵۰۰۰ زرو ډېر مامورين وژل شوي دي او له ۱۵۰۰۰ زرو ډېر نور ټپيان دي.

خو د کابل د دفاع وزارت وياند محمد رادمنش له رسنيو سره په خبرو کې د ناټو پر دې راپور نيوکه کړې ، ويلي يي دې چې د ناټو له لوري اعلان شوی شمېر تلفات نشو منلی . نوموړي زياته کړي چې: «دا بايد په پام کې ونيول شي، چې افغان امنيتي ځواکونه د نړی په استازيتوب د ترهگرو پر ضد جنگېږي » ).

خو ورپسې د ناټو عمومي قوماندان امريکايی جنرال نيکولسن ، نن ، يعنی د اکست په ۳۱ مه نيټه د کورنيواموړو په وزارت کې يوې دوه ورځنی غونډې ته وويل : يوازي په تير جولای مياشت کې ۹۰۰ افغان سرتيري وژل شوي دي . ده وويل : همدا تيره شپه بيخي ډېر سرتيري له طالبانو سره په جګړه کې مړه او زخميان شول .

د نوموړي جنرال په خبره هره ورځ په اوسط ډول ۳۰ تنه افغان عسکر وژل کيږي ، او د جنرال کليفلينډ په قول روزانه ۲۰ سرتيري وژل کيږي . او د حنيف اتمر په خبره ۲۵ سرتيري د طالبانو له لاسه د مرګ کندي ته لويږي . که څه هم د دوی دريو واړو شميرې ډېرې سره نږدې دي خو د دفاع او کورنيو وزارتونو وياندويان بيا له حقايقو ناخبره او يا دروغ وايی .

د افغان ځواکونو په اړه د هغوی د نورو خارجي دوستانو وړاندويني او نظرونه :

۱ - (افغان ځواکونه په راتلونکي کې له سخت بد حالت سره مخ کيدونکي دي) اشتن کارټر د امريکا دفاع وزير

۲ - ( د طالبانو استخباراتي او جنگی تکتيک د پخوا په پرتله ډېر پياوړی شوی ، افغان ځواکونو ته به يی مقابله گرانه وي ) د ميشتو بهرنيو ځواکونو مرستيال وياند جنرال کليفلنډ

۳ - (طالبانو رښتيا په افغانستان کې ډيري تاکتيکی برياوي لرلي دي ، او دا بهير لا هم روان دی . د طالبانو توانمندي بايد ناڅاپی ونه گڼله شي ، بلکی د افغان حکومت لپاره طالبان جدی گواښ دی . موږ يی بايد د ماتيدلو هڅې وکړو.) جنرال کلولنډ د امريکي ځانګړو عملياتو قومندان .

٤ - ( طالبانو د لښکرگاه په شمول ستراتيژيکو سيمو ته خپل تمرکز زيات کړی دی. امکان لري چې په راتلونکو وختونو کې به جګړه نوره هم سخته شي. ) جنرال چارلي کليفلينډ .

۵ - ( موږ افغان ځواکونو ته وايو چې تاسو له مورچو را ووزئ ، يرغليز حالت خپل کړئ ، خو دوی نشی کولای . او دا حالت اوس

طالبانو خپل کړی .) جنرال کليفلينډ .

٦ - (وسله والو طالبانو د پخوا په پرتله زياتې سيمې نيولې او مرکزي حکومت ته يې د ګواښ کړی پراخه کړې ده ) د افغانستان لپاره د ملګرو ملتونو د سياسی څانګی استاځی

او ډېرې نور ... بهرنيان ، هره ورځ هم خپل ګوډاګيان جګړې ته هڅوي ، پيسې ورکوي او له بلې خوا يې روحيات ورځپی ترڅو يې د تل لپاره د ګوډاګيتوب په روحيه تر خپل پريشر لاندې وساتي. او کله هم د خپلواکی سوچ او فکر ورسره پيدا نشي .

خو په مقابل کې يې د افغان عسکرو اعتراض داسي څرګندوي چې پخپله خوله هم په ګوډاګيتوب اعتراف کوي او هم په ور اوښتو بې شميره تلفاتو .

دا ځکه چې د دفاع وزارت وياند پرون د ناټو ځواکونو د مرستيال وياند چارلس کليفلنډ د خبرو په رد کې په اعتراضيه ډول وويل : چې زموږ بهرني دوستان دا بايد په پام کې ولري چې موږ (افغان عسکر) د بهرنيو ځواکونو په استاځيتوب د طالبانو په وړاندي جنګيږو ، نو تاسو ته پکار ده چې زموږ د تلفاتو شميري رسوا نکړئ ، بلکې موږ ته نوره حوصله راکړئ او مرستې راسره وکړئ .

د دې خبري د لمر غوندي واضح مطلب دا شو چې موږ د خپل هيواد د دفاع عسکر نه ، بلکي د خارجيانو د ناوليو مقاصدو لپاره د پيسو په مقابل کې د کرايې جګړه ماران يو او له خپلو وطنوالو سره جنګيږو ،

د پورتنيو دواړو خبرو په اړه د حنيف اتمر اعتراف :

په امنيتي او دفاعي چارو کې د غني مشر سلاکار، حنيف اتمر د روان ٢٠١٦ کال په لومړيو کې په چين کې د بهرنيانو د يوې غونډې په ترځ کې په خپله ليکله شوي وينا کې وويل: هره ورځ په اوسط ډول زمونږ ٢٠ تر ٢٥ سرتيري وژل کيږي، تر ٪٧٠ زيات دولتي منابع او امکانات مو له طالبانو سره د جګړې او مبارزې لپاره ځانګړي کړي دي، دا قرباني مونږ يوازې د افغانستان د دفاع په خاطر نه ورکوو؛ بلکې په دې غونډه کې ستاسو د هر يوه په نمايندګی مونږ دا قربانې ورکړې او ورکوو يې.

حنيف اتمر په څرګندو ټکو اعتراف کوي چې موږ د بهرنيانو لپاره جګړه کوو . او په عين حال کې د تلفاتو په اوږيدلو داسی اقرار کوي چې وايی : هره ورځ په اوسط ډول زموږ ٢٠ تر ٢٥ عسکر وژل کيږي . نو ٢٥ سرتيري چې روزانه وژل کيږي او دا ضرب کړي په ٨ مياشتو کې نو ټوټل شميره يی تر شپږ زره اوړي . نو د دفاع وزارت وياند ولي د ناټو پر کومندان کليفلينډ اعتراض کوي چې افغان عسکر په اتو مياشتو کې ٥ زره نه دي وژل شوي ، بلکې د حنيف اتمر په خبره چې د ملي امنيت مشر دی ؛ تر٦ شپږ زره زيات وژل کيږي. او د جنرال نيکولسن په قول تر ٨ اتو زره پوري سرتيري په اتو مياشتو کې وژل شوي .

هو ! د عسکري تلفاتو د پټولو ګيله دي پرځای ده چې بايد له خارجي بادارانو يې وکړئ ، ځکه چې تاسو د هغوی لپاره په کرايه جنګيږئ او هغوی مو راز پټ نه ساتي ، رسوا کوي مو . دا ګيله مو پرځای ده ، که يې چيري هغوی ومني . اما د عسکرو دومره زيات وژل مو تر لمر روښانه حقيقت دی .

پای ......................!



قاري سعيد زرمتی

# د تاریخ مظلوم، شهید ملا عبدالله ګردیزی

شهید ملا عبدالله چې مغرضو تاریخ لیکونکو په ګوډملا سره سره تشهیر کړی دی دپکتیا ګردیز ختیځ ته د ډاکټر نجیب د پلرني کلي میلن سره نږدې د اتماني د کلي اوسیدونکی او په قوم احمدزی و،ملا عبدالله په پکتیا کې د اتماني په ملا سره شهرت درلود. چې د انګریز خلاف جهاد کې یې ښه کردار اداء کړی و او تر خوست او پکتیکا پورې یې شهرت درلود

د غبار د تاریخ له مخې کله چې امان الله خان لومړنۍ نظامنامه جوړه کړه بعضي فقرات یې صریحا له شریعت سره ټکر و،مثلا له بلوغ وړاندې نکاح یې غیرقانوني او مردوده بلله. سنزل نوید په خپل کتاب ( افغانستان در عهد امانیه) کې لیکي چې د خوست د منګلو قوم یو تن چې یوه نجلۍ یې په ماشومتوب نامزاده کړې وه کله یې چې غوښتل له بلوغ وروسته یې ځان ته واده کړي د نجلۍ کورنۍ په دې نکاح راضي نه وه، خبره حکومت ته لاړه د امیرالدین په نوم حکومتي چارواکي د نظامنامې په اساس فیصله وکړه چې دغه نکاح غیرقانوني شوې او باید فسخه شي، د نجلۍ کورنۍ په دې خبره راضي شوه خو نکاح کوونکی مدعي ملا عبدالله ته ورغی او فتوی یې ترې وغوښته ملا عبدالله ورته وویل چې په شریعت کې له بلوغ وړاندې نکاح منعقده ده او هیڅوک یې نشي- فسخ کولی. دې خبرې زور واخیست تردې چې د ملا عبدالله د فتوی په اساس د منګلو قوم د نظامنامې په مقابل کې ودرېد. ملا عبدالله ګردیزي او ملګري یې ملا عبدالرشیدسهاک چې د زرملې له سهاکو څخه و د ۱۳۰۲ لمریز کال په حوت کې حکومت ته عرض وکړ چې د نظامنامې غیر شرعي مواد تبدیل کړي خو حکومت په نظامنامه دومره ډېر ټینګار درلود او په داسې جبر یې تطبیقوله چې زما د استاد مولوي اعظم ګل صاحب له قوله د هغه وخت یوه شاعر موجوده وضعیت د شعر په ژبه داسې بیان کړی و.

هرکسی نظم نامه آموختند – کتب شرع را همی سوختند

د امان الله خان حکومت د ملا عبدالله غوښتنه رد کړه او همدا و چې ملا عبدالله د پکتیا، پکتیکا او خوست په سیمو وګرځید، د تاریخ له روایته په یوه لاس کې به یې قرآن او په بل کې نظامنامه نیولې وه او خلکو ته به یې ویل چې کوم یو منئ، خلکو به طبعا قرانکریم مانه او ده ورته ویل چې اوس قرآن نه بلکې دغه نظامنامه په تاسو حکومت کوي. په دې ډول پاڅون پیل شو، حکومت لوی پوځ پکتیا ته ولیږه خو شکست یې وخوړ او قریبا تر یو نیم کال پورې

سختي جګړې وشوه چې د ملا عبدالله پاڅونيانو دلويې پکتيا او لوګر ډېرې ساحې ونيولې حتی د میدان وردګو تر سیداباد پورې ورسیدل.

پاڅون په پوره بریا روان و او په وړاندې يې ټول حکومتي کوښښونه ناکام شول مګر هغه وخت له زوال او کمزورۍ سره مخ شو کله چې له هند څخه دعبدالکریم په نوم يو غير افغان خوست ته لاړ او په دې پاڅون کې داخل شو، عبدالکریم له هنده راغلی ، دعوه يې درلوده چې د اميرشيرعلي خان د زوی يعقوب خان د مينځي زوی يم،ده دعوه کوله چې اصلا د افغانستان پاچاهي زموږ يعني د اميرشيرعلي خان د اولادې حق دی، عبدالرحمان خان چې د افضل خان زوی او د اميرشيرعلي وراره و دوی د انګریز په کومک زموږ دپاچاهي حق غصب کړی دی،کله چې دا سړی راغی حکومت او انګریز دواړو يې د تشهیر لپاره ډېر کار وکړ او له موقع په استفاده يې دا خبره مشهوره کړه چې د ملا عبدالله پاڅون د اسلام جنګ نه بلکې د امیر شيرعلي خان اولادې ته د پاچاهي د ستنولو مبارزه ده،داسې هم ويل کيږي چې دغه سړی انګریزانو رالیږلی و تر څو پاڅون بدنام کړي، ددې خبرې له شهرت سره د پاڅون داعيه او شرعي انګيزه کمزورې او ډېر خلک ترې بيل شول، ترديې چې په پای کې لږ کسان پاته او هغه دملا عبدالله او ملاعبدالرشیدپه شمول حکومت ونیول او د کابل شاه شهید ته نږدې د سياه سنګ په سيمه کې يې اعدام کړل.

وايي ملا عبدالله چې له نيول کيدو وروسته امان الله اخان ته وروستل شو هغه ورته وويل چې ما به تاته ښښنه کړې وای مګر دا چې تا عبدالکریم د پاچاهۍ دعوه دار له ځان سره ملګری کړ نو اوس دې نه شم ښښلی.

دغه وخت عبدالکریم د انګریز تر واک لاندې هند ته وتښتېد د امان الله خان حکومت يې له انګریز څخه د نيولو او دوی ته سپارلو غوښتنه وکړه، انګریزانو چې د عجب خان افريدي د ورسپارلو غوښتنه کړې وه مګر دا چې امان الله خان عجب خان افریدی ورونه سپاره. عبدالکریم په هند کې پاته شو چې وروسته برما ته تبعيد او هلته يې خودکشي وکړه.

نن سبا د شهيد ملا عبدالله په اړه ړانده تاريخ ليکونکي وايي چې نوموړی انګریز راپورته کړی و مګر دا چې ملا عبدالله له انګریز سره تړاو نه درلود په دې اړه ډېر شواهد شته.سنزل نويد په خپل کتاب کې د انګریز او افغان حکومت دپټو مذاکراتو داسې اسناد خپاره کړي چې هغوی په دې لټه کې دي تر څو په ګډه د ملا عبدالله مالي ملاتړ کوونکي پيدا کړي، د هغو اسنادو له مخې دانګریزانو غالب ګومان دا وو چې د روسيې نوي واک ته رسيدلي بلشويکان د ملا عبدالله ملاتړ کوي خو ددې خبرې لپاره هم هيڅ ثبوت نه دی موندل شوی خو په عين حال کې دا اسناد له ملا عبدالله سره دانګریز د ملاتړ احتمال په کلکه ردوي.

بهادر شاه ظفر کاکا خيل د خپل کتاب پښتانه د تاريخ په رڼا کې په ۸۸۹ مخ کې وايي چې د ملا عبدالله د ځپلو لپاره انګریزانو له امان الله خان سره د پنځه زره ټوپکو مرسته کړې وه، دغه راز ډاکټر حسن کاکړ د بي بي سي لخوا چاپ شوي کتاب ژوندۍ خاطرې په ۳۰ مخ کې ويلي چې د انګریزانو د هغه

وخت ټول جنګي ارشيفونه يي کتلي خو داسې کوم سند يا شواهد يې په کې نه دي مونډلي چې د ملا عبدالله په پاڅون کې د انګريز لاس لرل ترې ثابت کړي بلکې انګريز عملا د امان الله خان تر څنګ ولاړ او د پاڅون د سرکوبولو هڅه يي کوله.

د ۱۹۲۵ د مى مياشتې په ۲۵ مه ملا عبدالله او ۶۰ تنه ملګري يې چې دده درى زلمي زامن او يو زوم هم په کې و د کابل ختيځ کې سياه سنګ سيمې ته يووړل شول او د خلکو د لوى ټولي تر مخ چارماري او اعدام شول په اعدام شويو کې د ملا عبدالله تر ټولو جذباتي ملګرى ملا عبدالرشيد سهاک هم و چې ځان يې بت شکن باله ، ځکه ده د استقلال لـه منار سره درول شوي د نادر خان مجسمه په پټه ماته کړې وه اوپه همدې يي شهرت درلود ملا عبدالرشيد تر اعدام وړاندې د خبرو په مهال ددې په ځاى چې ټيټه يي ووايي يو ځل بيا امان الله او دده ملګري کافران وبلل او په وړاندې يي د جهاد غږ پورته کړ. زما د استاد مولوي اعظم ګل صاحب شفاهي روايت دى چې ددغو کسانو د شهادت په ځاى تر ډيره وخته د شپې مهال ډيوې او انوار ليدل کيدل، دا خبره دومره مشهوره شوه چې په کابل کې د خلکو تر منځ په يوه لويه هنګامه بدله شوه او خلکو د ملا عبدالله د حقانيت لوى دليل ګاڼه، تردې چې حکومت ددې خبرې له خپريدو خطر احساس کړ او بيا يي په دې ځمکه څو بازاري سپيان ووژل تر څو هغه اثر ختم شي. والله اعلم

په دې ډول د شهيد ملا عبدالله داستان پاى ته ورسيد خو دده مبارزې امان الله خان مجبور کړ چې لويه جرګه راوغواړي او نظامنامه د علماء کرامو نظر ته وړاندې کړي چې په دې ډول ډيرى غيرشرعى مواد ترې لرې شول.

د روس ضد جهاد په مهال شهيد مولوي نصرـ الله منصور يو له هغو کسانو و چې ملا عبدالله يې د يوه ستر غازي او مبارز عالم په حيث معرفي کاوو نوموړي به د جلسو په مهال د شهيد ملا عبدالله نوم د يوه اتل په حيث په غټو تورو خطاطي کاوو تر څو يي نوى نسل له نوم اوکارنامو سره بلد او له مبارزې يي زده کړه وکړي.

په هر حال شهيد ملا عبدالله د افغانستان د استقلال د جګړو غازي او بيا د انګريز په خلاف د افغانانو د جهاد د علياء اهدافو تر ټولو ستر حامي او د اماني سيکولرزم په وړاندې سرسپارلى مجاهد و چې تر ټولو وړاندې يې افغانستان ته د غربي بي دينه افکارو د سرايت په مقابل کې بيرغ پورته او تر وروستى شيبې يې د بي دينى په مقابل کې په جګو سترګو مبارزه وکړه.

اوس چې افغانستان يو ځل بيا د سيکولرايزيشن له خطر سره مخ دى د بي دينى په وړاندې زموږ ددې مخکښ غازي پيژندل او قدرداني يوه مهمه اړتيا ده چې بايد نوى نسل ترې خبر او له قربانيو څخه يې زده کړه وکړي .

# ددولت په لیکو کې د تیښتې

# او تسلیمي څپه تونده شوې!!

**دعابد لیکنه**

لـه ټـول نړیـوال ملاتـړ سره سره چې امریکـا اودناټو غړې هیوادونه یې دکابل له ادارې سره ترسره کوي بیایې هم یوه شپه په کرار نـه ده تېره کـړې اودحکـومتي بې مثلـه جنجـالي تشـکیل پـه ګډون یې له بېلابېلو شخړو اوسـتونزو سره لاس اوګریـوان وي ، دوسله والو مخـالفینو اوطالبانو نظامي تکتیکونه او پرلپسې بریدونـه خـو هاغـه سرخـوږې دی چـې ددې ادارې وجود نړیوالو لـه دوی سره ددې سرخوږې په منلو مشروط کړی .

ولې په دې وروستیوکې ددولت پـه لیکـوکې دنظامي افرادو تېښته اوتسلیمي هغه ستونزه ده چې څپه یې ډېره تونده شوې اودولتي کړی یې له یوډول وارخطایۍ سره مخ کړې،دکره معلومـاتو لـه مخـې یـواځې پـه روانـه اګست میاشت کې ٥٣٥ تنه له دولت څخه طالبانو ته اوښتي اوتسـلیم شـوي دي، په دې اړه دکابل اداره له اعتراف څخه ډډه کوي اوکه څـه منـي هـم پـه ډېره کمه اندازه یې ښیې، ولې پخپله امریکایانو اودناټو نورو غړو هیوادونـو بـار بار دا اعلان کړې چې ددولت له لیکو څخه په تېره داردو او پولیسـو لـه منځـه ډلـې ډلـې پـه تېښـته دي، دروان کـال دمـارچ پـه میاشـت کـې د ' سـیګار' امریکایي موسسې چې په افغانستان کې دامریکـایي مرستو څارنـه کـوي پـه خپل راپور کې وویل: « په تېر کال کي داردو له لیکـو څخـه ١٥٠٠٠ پوځیـان تښتیدلي دي » .

که څه هم ددې تېښـتې دمخنیوي لپاره یـې ځینـې هڅـې هـم تـرسره کړې، ولې هغه اسباب اوعلتونه چې ددې ستونزې په وجودکې کارنـده اومؤثر ثابت دي، داسې څه دي چې له منځه وړل یې دکابـل د دوه سرې ادارې پـه وس کې نه دي، ځکه خـویې دوروستـۍ چارې پـه توګه پـه دې وروسـتیوکې دطالبانو په زندانونوکې دهغوی په وژنـې اوبمبـارۍ لاس پـورې کـړی، داسـې راپورونه هم شته هغه عسکر او نظـامي افـراد چـې سیمه یـې طالبانوتـه پـرې ایښې وي بیا له دوی سره کوم قیمت نه لري او په نظامي تشکیل کې یـې نـه نیسي او ځینې خو یې په بېلابېلو بهانو زندانونوته هم استوي .

وایي چې په دولتي تشکیلاتوکې ګډوډې، بې نظمـي، دلوژسـتکیک پـه برخه کې بې کچې اداري فسـاداو د افـرادو دتجهیـز کمزورتیـا ددې معاضلـې علتونه او لاملونه دي، ولې له دې علتونو سره سره ځیني نور عمده لاملونه هـم په ګوته کیږي چې دکابل اداره یې له دې سترې ستونزې سره مخ کړې :

لومړی داچې دطالبانو وروستیو بریدونو او سوبو په ډېرو سیموپه تېره په هغو سیمواو ولایتونوکې دمقابل لوري په جنګي قوې اونظامي افرادو ډېر اغېز شیندلي چې هلته طالبانو یولړ سیمې لاندې اوګڼ دولتي مرکزونه یې په خپل تصرف کې راوستلي لکه دبغلان، کندز، هلمند، فاریاب، پکتیا اودلوګر په ولایتونه کې .

دویم ستر اوترټولو کارنده سبب په دې برخه کې دطالبانو د دعوت او ارشاد دکمیسیون وروستی اغېزناکې هڅې دي چې ترډېره دملي اردو، ملي پولیسو او حتی اربکیانو په تسلیمي کې کارنده ثابتېږي، ددوی دکارونو اثر دی چې داربکیانو په څېر دطالبانو سرسخته دښمنان هم خپل لوري ته اړوي او په دې ډول یې وکولای شول د طالبانو په ورانډې د دولت وروستی

کارنده پروژې ته هم لاره پیداکړي، همدا لامل دی چې په سرپل، خوست، کونړ، لغمان، پکتیکا، وردګ، اروزګان، دای کندی ، غور،جوزجان او دکابل په څېر ولایتونو کې هم طالبانوته زیات شمېر اربکیان له خپلو وسلو او عرادو سره اوښتي دي .

شنونکي وایي ددغې لړۍ دوام دکابل کاواکې ادارې ته هغه ستر ګواښ دی، چې په ظاهره یې رنګ تت ولې داوږدې مودې اغېز یې ناخاپي اودانفلاق ترحده دی .

که څه هم کابل په خپلو مخالفینو دبریاتظاهر کوي او هره ورځ دلسګونو طالبانو دمرګ نه تصدیق کېدونکي خبرونه ورکوي او هڅه کوي په دې ډول په هیوادکې دپورته په څېر دشته حقایقو اوډېرو هغو واقعیتونو پرمخ پرده واچوي چې ترډېره ددوی په زوال اوپه اداره کې دبې کچې ګډوډۍ په وجود دلالت کوي.

خو په مقابل کې یې دډېرو سترو ګوزارونو له لېدو سره سره دطالبانو په لیکوکې انسجام اوکلکه همغږي لیدل کیږي، دغه راز خپل هدف ته د رسېدو لپاره له مؤثرو فزیکي حرکتونو سره سره° ډېرو باریکو نقطوته متوجه کېدل یې هغه څه دي چې په هغوی کې دمبارزې لوړه حوصله اوخپل هدف ته ډېره ژمنتیاښیي، ځکه نو په ډېرلوړ مورال مبارزه کوي اوپه هیڅ صورت په شاکېدونکي نه دي ، کنه نو له نظامي بریدونو سره په څنګ کې په دومره لویه پیمانه دجلب اوجذب هڅې هسې تصادفی امر او طفیلی پروسه نه ده چې یواځې زماني ګردش یې تردومره حده ورسوي .

دوروستی خبرې په توګه ویلی شوچې په نظام کې دافرادو دتېښتې اوتسلیمی دڅپې دغه تېزوالی دطالبانو ځواک اودهغوی مادي قوت نه دی، چې دولتي مؤظفین دې دامریکایي ډالرو په څېر ورجذب کړي، بلکې ترډېره دحقایقو درک اوهغه معنوي اودیني امور دي چې دطالبانو تګلاره حقه اود دوه سري نظام بطلان او پردیتوب په ډاګه کوي .

حسن زوی

# نوي فتوحات اود امریکا طفـلانه حرکات

پـر حقـایقواعتراف دحـق منونکواوحـق پالونکوخلکوکاردی اوله حقایقوانکار ښه لـوی بد عادت دی ،دا بد عادت افرادو، کورنیـو، قبیلـو او هېوادونو او نظامونو ته لوئ تاوانونه وراړوي او پـه حقـایقو اعـتراف کـول خلـک د لویـو تاوانونو نه ساتي نو ددې لپاره چې له حقـایقو مـو انکار نه وي کړی مـوږ دا منـو او پـرې اعـتراف کوو چې پدې مادي نړۍ کې بل یو داسـی هېـواد هم نشته چې په ټولو امورو کـې د امریکـا سره د برابـروالي ادعـا وکـړی او یـا ورنـه ځـان پورتـه وکښي.

د امریکا مادي وسایلو ته د هـیچ چـا مـادي وسایل نشي رسېدای ډېر لویه ځمکه یې ډېر سـتر او ښـه زعـی حاصـلات ورکـوي ، د نـړۍ زیـات بدای خلک همدلته دي ، صنعت او تجارت یې له هـر چـا وړانـدې دی، کـومې وسـلې او جنگـي وسایل یې چـې پـه فـابریکو کـې جـوړیږي او د نړۍ په گڼو هېوادونو پلورل کېـږي لـه دې لارې لاسته راتلونکې پیسې دومره زیاتې دي چې شاید د نـړۍ دبـل یـو صـادرونکي هېـواد د صـادراتو پیسې به ورته ونه رسېږي ؛ رښتیا داده چې اقتصاد یې ډېر پیاوړی دی.

شوروي اتحاد ایله ۸ کاله په افغانستان کـې جنـگ جـاري وسـاتلای شـو او ۸ کلونـه پـس د شوروي اتحـاد د اقتصـاد هغـه حالـت و چـې نـه یـواځې دا چـې جنـگ یـې نـور روان و نـه شـو ساتلای بلکې د خپل استعمار لاندې هېوادونه یـې هم نور له ځان سره نه شو سـاتلای نـو هماغـه و چـې ټوټـه ټوټـه شـو اوټـول استعمارشـوي هېوادونوترې آرادي واخستله خـو امریکـا چـې دخپل تـاریخ تـر ټولـو اوږد او د لـوړو مصـارفو جنگ کې د ۱۵ کلونو راهیسې اخته ده داسمه ده چې اقتصاد ته یـې ډېـر زیـان وراوختـی دی او د چین په څېـرد هېوادونـوهم پـه ملیاردونـه ډالـر پوروړی ده خو د ستراقتصادی بحران سره لا نـده مخامخ نوځکه لاهم په ځان کـې د جنـگ روان ساتلو توان ویني ؛لاهـم پـه نـړۍ کـې د شـیطاني پلانونو او دسیسو پـه تطبیـق پـه ملیاردونـه ډالـر لگوي او لا یې هم د خپلو غلامو هېوادونو سره د کلنیو مرستو لړۍ روانه ساتلې ده.

مـوږ دا هـم منـو چـې د امریکـا فـوځ یوخونخوار،بی رحمه او جنگ خوښونکی فوځ دی ځکه چې دا داروپانـه دراغلـو هغـه قـاتلینو، قابضـــینو، لوټمارانـــو او غلـــو اولاد دی چـــې دریډاندین په نوم دامریکا خپل اوسـېدونکي يـې وژلي دي اوپدې خـاورې قـابض شـويدي ؛ نوپـه دوئ کې د خپلو پلرونواو نیکونـو نښـې او آثـار شته.

امریکایـان خپـل همـدې سـتر او مـادي او نظامي ځواک سخت مغرور کړیـدي او د غـرور تر څنگ دوئ د مادیـاتو سـخت حریصـان هـم دي.

امریکایانو کې نورې گنې بـد اخلاقـئ هـم شته خو دا دواړه یانې غـرور اود مادیـاتو حـرص دوه داسی اخلاقي کمزوریانې دي چې د امریکـا د ټولو ناسـمو پریکـړو او دناسـمو پرېکـړو پـه تنیجه کې د ټولو ناکامیو د اصل لامل په توگه یې یادولی شو.

د دوهم نړیوال جنگ نه پس چې امریکـا پر کوریـا ، ویتنـام ، ډومینکن، لبنـان، گرینـاډا، پانامه، عراق، صومالیه، هیتي، بوسنیا، کوسـوو ، افغانسـتان او بیـا پـه عـراق حملـې کړیـدی ددې ټولویرغلونو هدف یواځې او یـواځې پـر ټـولې نړۍ خپلـه بـاداري قـائمول او دنـړۍ پـر وسـایلو قبضه راوستل و.

د افغان جهاد د کامیابۍ په تنیجه کې د نړۍ د یو قطبي کېدلو نه پـس خـو پـه امریکـا بیخـي سترگې پټې شوې نه ورته په نړۍ کې کوم طاقت د طاقت په نظر ښکارېدو، نه يـې پـه چـا کـې د مقابلې توان لیدلو او نه يې په وهم او خیـال کـې دا راتله چې گینې څوک به یې مقابلی ته د راتلـو جرأت وکړي نوبې له دې چـې د افغانـانو تـاریخ يې رامخې ته کـړی وای، د دوئ د مـزاج نـه يـې ځـان خـبر کـړی اولـږ تـر لـږه د انگریزانـو او روسانو شرمېدلې ماتی يې رامخـی تـه کـړی وای دلتـه د سـوچه اسـلامي او د امـن نـه ډک نظـام دړنگولو ؛ دسـیمې د زېرمـو د قبضـې او دسـیمې دهېوادونو د سرکوبولو لپاره يـې پـه ۲۰۰۱م کـال کې پر افغانستان یرغل وکړ.

امریکا د یادو شومو اهدافو د ترلاسه کولو لپاره د دائمې قبضـې پـه موخـه زمـونږ پـر گـران هېواد یرغل کړی و نو ځکه يې هیڅ قسمه مهـال ویش نه و وړاندې کړی اونه يې داویل چـې کلـه به له دې هېواد نه بېرته خپل فوځونه وباسي.

خو کله چې طالبان د دوئ پر ضد د جنـگ ډکر ته راووتل ؛جنگ ورو ورو په مـنظم کېـدو او د امریکایانو تلفات مخ په زیاتېدو شول او پـه افغانسـتان کـې شـتو امریکـایې او نـورو بهرنـو ځواکونو ته يې مقابلـه ناشـونې شـوه نـو جـارج ډبلیـوبش پـه ۲۰۰۶م کـې افغانسـتان تـه اضـافي

فوځونـه راواسـتول ، هغـه مهـال بـارک اوبامـا سناتورو او د امریکا د دولـت نـه یـې پـه شـدت غوښتنه کوله چې د عراق نه دې خپله ټوله توجو د افغانستان جګړې ته راواړوي.

هماغه و چې د ۲۰۰۸م کال په ولسمشر-یزو انتخابـاتو کـې د بریـالیتوب سره سـم اوبامـا پـه افغانستان کې د خپلـو سرتېـرو د زیـاتولو اعـلان وکړ خو چې دې اعلان د طالبانو په روحې هـیڅ منفي اثر ونکړ او د عسکرو زیـاتوالي د جګـړې شدت راکم او نه هم د امریکایانو او نورو بهرنو ځواکونو پـه تلفـاتو کـې کمـوالی راغلـو بلکـې جګړه لاپسې توده او تلفات لاپسـې زیـات شـول چې ورسره د امریکایانو له لورې د افغانستان تـه د امریکایې فوځونو د راوستلو غوښـتنې رامخـې ته شوې نو د ډېرې سـترې نـاهیلۍ پـه عـالم کـې اوباما اعلان وکړ چې له ۲۰۱۱م کال وروسته بـه یې د فوځیانو د راویستلو پروګرام پیل شي.

پـه ۲۰۱۴ م کـې د اشرف غنـي او عبـدالله د ګـوډاګۍ اداري رامنځتـه کېـدو سره سـم چـې د امریکا او ناټو سره د امنیتـي تړونونـو پـه نـوم د هېواد پلورنې سندونه لاسلیک شـول نـو امریکـا بیا خپل پروګرام بدل کړ او اعلان یې وکړ چې د ۲۰۱۴م نه پس هم د امریکا ۹۸۰۰ او د نـاټو۲۰۰۰ عسکر په افغانستان کې پاتې کېږي چـې ۲۰۱۶ م کې به دا شمېر نیمایې ته راکوز شي.

د طالبانو په لاس د کنـدز ښـار د فتحـې نـه پس بیا امریکاخپله وړاندینۍ تګـلاره بدلـه کـړه او ویې ویل چې د ۲۰۱۶م تر پایـه بـه افغانسـتان کـې ۹۸۰۰ سرتېـرې سـاتی او د ۲۰۱۷ م کـال پـه لومړۍ میاشت کې بـه بیـا دغـه شـمېره ۵۵۰۰ تـه راښکته کوي.

اوس یې بیا اعلان وکړ چـې د ۲۰۱۶ م کـال تر پایه به په افغانستان کې ۹۸۰۰ نه بلکـې ۸۴۰۰ عسکر وسـاتي ، تـر څنـګ یـې د ۸۰۰ تـازه دمـو عسکرو د راوستولو اعلان هم کړیدی او هلمنـد کې د طالبانو د نویو سترو فتوحاتو د مخنیـوي او خپلو ګوډاګیانو ته د نوې روحـې ورکولـو لپـاره یې هلمند ته د دوئ په وینا۱۰۰ امریکایې عسکر رالېږلي هم دي .

هغه امریکا چې دهمېشنۍ قبضې په موخـه یـې پرافغانسـتان یرغـل وکـړ اوس چـې دخپلـو فوځونو دویستلو اعلانونه کوي ؛ کلـه بېرتـه لـه خپلـې ژمنـې پشـا کېـږي او دخپلـو فوځونـو دایسـارولو خـبره کـوي ؛ کلـه خپـل فوځونـه راکموي؛ کله بېرته له خپلې خبرې اوړي او وایې چې دفوځیانو دراکمولوپرېکړه یې بدله کړیـده ؛ کله وایې دفوځیانوجګړه یزماموریت یې پای تـه رسـېدلی دی ؛ کلـه بېرتـه دجګـړې ډګرتـه راستنېږي؛ دامریکا داغیرثابت حالت ددې خبرې ډېرلوی دلیل دی چې دافغانستان په اړه دامریکـا تګلاره ډېره متذبذبه ده.

ډېرخلــک لاهــم گومـــان کــوي چـــې دافغانســتان پــه اړه دامریکــا تګــلاره پــه کلکــو بنسټونو ولاړه اوباثباته ده خوحقیقت دادی چې دطالب قوي اوستروګوزارونودامریکا ټول نظم دړی وړی کړیدی؛ کله چې لړه دارام ساه واخلي وایې چې موږکال نورهم پاتې کېږو، خو چې څومضــبوط ګوزارونــه وخــوري اودطالبـــانو فتوحات مخ په زیاتېدوشي نوبیا دوتلوخبرې پیل کړي.

دایــواځې پــه افغانســتان کــې نــده بلکــې دامریکاټول تاریخ دهمدې خبرې ګواه دی ؛ په هرچایې چې یرغل کړیدی نوپه پیل کې ډېر منظم ښکاري خوچې بیا یې دکمزوروخلکو له لاسه ګوزارونه خوړلي نوټول نظم یې تباه اوډېر زر دبې نظمۍ اوخنـدا وړحالـت سره یوځـای تښتېدلي دي.

پدې تازه ورځوکې چې دهېواد په ختیځ ، شمال او جنوب کې طالبانوګڼ فوځي مرکزونه فتح اوفراخې سیمې اوغونـډې غونـډې ولسـوالۍ ونیولي نوامریکا یوځل بیا سخته ورخطا شویده اوتګلاره یې دسخت تذبذب ښکارده او دهمدې تذبذب او ورخطایۍ په حالـت کـې یـې سـخت طفلانه اودخندا وړ حرکات او اقدامات کړیدي.

هغـه هلمنـد چـې پکـې زرونـه بهـرني امریکایې اوبرتانوي اشغالګر دطالبـانو دمقـابلې نـه عـاجز اوپـه تېښـته تـرې وتښـتېدل اوس بـه یواځې ۱۰۰ امریکایې فوځیان څرنګه دطالبـانو مقابلـه وکـړای شي؟ څـه بـه لـه طالبـانو هلمنـد وساتي اوڅه به خپلوګوډاګیـانو تـه نـوې روحیـه ورکړي؟

موږ پدې پوهېږو چې امریکا لاهم دخپلې ګوډاګۍ اداري دبقا اودخپل دائمي اشغال خوبونه وینـي او ددې لپـاره لګیـاده ناکـامې هڅـې کـوي اوغــواړي چــې دســیمې دټولوهېوادونــو لپــاره دیودائمي ګوابښ په توګه پاتې شي خوداهیلـه یـې هیڅکله هـم پـوره کېـدونکې نـده ؛ مـوږ خپلـو ګرانو هېوادوالـو، ټـول مسـلمان ملـت اودسـیمې هېوادونو ته زېری ورکـووچې نـور پـه امریکـا کې دلته دپاتې کېدلواوجنګ ته دطـول ورکولـو همت اوحوصله نده پـاتې ؛ طفلانـه اودخنـدا وړ حرکات یې هیڅ ګټه نـه ور رسـوي اوډېـر ژر ده چې دشرمېدلې ماتې سره به موله هېـواده وتښـتي اوټوله سیمه به یې له شرنه په امن کې شي .

ان شاءالله تعالی

# گذر کوتاهی برابعـاد عملیات جهـادی عمری!

سعید بدخشانی

از بـدو عملیـات فـولادین وپیـام آورآزادی (عمری) که با نعره های ملکوتی الله اکبر در تمام کشور برمراکز قوای آمریکايي،قرارگاه ها وپایگاه هـای نظامی رژیـم مزدورآغـاز گردیـد،بلا درنـگ سلسله فتوحـات وتسخیرپوسته های دفاعي،کندک های مهم و واحدهای اداری اداره غربـی در گوشـه وکنـار کشـور از سـوی مجاهدین امارت اسلامی نیـز شروع وبسیار بـه موفقیت تام بصورت رعد آسا ادامه دارد.

درجریان غلیان وجوش عملیات مبارک عمری پایگـاه هـای بسا مصؤن ومهمـی ماننـد(هوتل نـارت گیت،بگرام و...)،همینگونه قطار های زرهـی امریکایها ودیگر اشغالگران کفری هـدف حمـلات مرکبـار ستاره هـای کهکشـان مجاهـدین فـدای قـرار گرفتـه،وبرعلاوه خسارات هنگفت مالی ده ها جنرال بلند پایه، مشاورین، دیپلومات ها وعساکر وحشی شان رهسپارجهنم ویا هـم معیوب شدند.

با این وضعیت اشغالگران امریکای بیش از پیش بشکست فاحش ورسوای مطلق مواجـه گردیـده وهمـه دبدبه وغرور شان بخاک یکسـان شـد وهمـین گونـه بـه رکود اقتصادی وتوان جبران ناپذیر روبرو شدند.

بنظرکارشناسان سیاسی ونظامی، باد هـای طوفـانی وتنـد عملیـات کوبنـده عمـری قصرهـای اقتـدار نظـام پوشالی را تکان داده وتمامی دسایس وعـزایم نافرجـام صلیبی های اشغالگر را خنثـی ساخته اسـت،واز جانـب دیگر به تبلیغات وشـایعات آن عـده رسـانها ومـدیاهای اجرتـی غـرب کـه بـه نقـل از بادارانشـان میگفتند:کـه تحرکات نظامی طالبـان کـاهش یافتـه اسـت)نیز جـواب دنـدان شـکن داد.حـالا آشـکار گردیـد کـه مجاهـدین امارت اسلامی تنها در چند منطقه ویا ولایت محدود نه بلکـه در تمـام نقـاط کشـور عملیـات هـای بسـا مهـم، منظم،هدفمند وکفر شکن را تنظیم کرده میتوانند.

آری! سرعت عملیات آهنین عمری نشـان داد کـه مجاهدین سلحشور امـارت اسـلامی نسبت بـه سـابق بـه تجربه های جنگی،مهارت های عصری وتاکتیـک هـای محاربوی جدید دست یافته اند،وبا استفاده از آن دایـره زندگی دشمن را چنان ضیق نمـوده انـد کـه قوماندانان وجنرالان بزدل دشمن مورال خود را ازدسـت داده انـدو از صحنه های نبرد فرار میکنند،ودر مقابل مجاهـدین بـا بسیار روحیه عالی قدم بقـدم بـه فتوحـات ودسـت آورد های عظیمی نائل می آیند وجهت استقلال کشور با گام های استوار به پیش میروند.

به باور ناظرین امـور جهـادی در کشـور، عملیات عمری به مقایسه سالیان گذشـته نهایـت مـؤثر وهدفمنـد میباشـد،که در گوشـه وکنـار کشـور پهنـاور گردیـده

وموفقانـه بـه پـیش درحرکـت اسـت،بنظر آنهـا:اگر مجاهدین سلسله عملیات را همچنـان کوبنـده وجـاری نگهبدارند،بـدون شـک اکثر ولایـات کشـور از وجـود اشغالگران ورژیم منحـوس پـاک وتحـت سـلطه امـارت اسلامی می درآید،که نمونه بـارز آن فـتح آکـثر اراضـی هلمند،قندوزوتسخیر واحدهای اداری بی شمار ومنـاطق استراتیژیکی ولایات دیگر کشور میباشد.

شایان ذکراست که درکتمرویـا بیشـتر از یـک مـاه گذشته ولسـوالی هـای مهم واسـتراتیژیکی ماننـد دهنـه غـوری بغلان،حصـارک ننگرهار،قلعـه زال وخـان آبـاد قندوز،خواجـه غـار تخار،جـانی خیـل پکتیـا ودیگـر ساحات وسیعی در سرپل،جوزجـان،غـور،فراه،هـرات، روزگان،کنـدهار،زابل،لغمان،لوگر،بدخشـان و..... فـتح وبه دشمن تلفات سنگینی جانی وخسارات فراوان مـالی وارد گرید.

**فشهد شاهد من اهلها:**

جنرال چارلز کلیولند سخنگوی ناتو در افغانسـتان می گوید: که در درگیرهای هشـت مـاه گذشـته بـیش از پنج هزار نظامی افغان جـان باختـه انـد.همچنان نزدیـک به پانزده هـزار نظـامی شـامل پـولیس وارتـش افغانسـتان زخمی شده اند.

نظامیان اداره کابل پـس ازشکسـت جبـران ناپـذیر در میدان جنگ با نیروهای جان نثـار طالبـان،از بـاداران خـود خواسـتند کـه بـیش از گذشـته اجیـران شـان را حمایت هـوای وزمینـی نمایند،لـذا امریکـای هـا گویـا مجدداً وارد نبرد با مجاهدین امارت اسلامی شدند که لله الحمد شمار زیادی شان در هلمنـد،ننگرهار وقنـدوز بـه کام مرگ فرسـتاده شدند،اشـغالگران وحشـی ومـزدوران تربیـه کـرده شـان طبـق عـادت دیرینـه خـود بعـد از شکست قریه وقصبات را هدف بمبارد مان بـی رحمانـه خویش قرار داده وانتقام عسـاکر شـانرا از کودکان،خـانم ها وبطور عموم از مردم بی دفـاع کشـور میگیرنـد،با ایـن همه جنایات نابخشودنی ونقض حقوق بشر بـازهم یـک قدم پیش روی کرده نتوانسته اند ونخواهند توانست.

ایـن در حالیسـت کـه بـه اسـاس محاسـبه نظـامی مجاهدین،در مـدت بیسـت یـک روز گذشـته در تمـام افغانسـتان۱۷۵عـراده تانـگ،۶۱رینجـر،۴۱عـراده جـات مختلف النوع غنیمت گرفتـه شـده اسـت،همینگونه دهـا تانگ ووسایط نظامی دیگر اداره اجیر تخریـب وطعمـه آتش گردیده است،به همینمنوال حدود۱۰۱۰ تن عسکر وپـولیس دشـمن کشـته وبـیش از ۷۲۵تـن زخمـی شـده اند،این ارقام در واقعیت از حالـت فلاکتبـار رژیـم کابـل وازمـورال عـالی مجاهـدین در عملیـات جـاری کشـور حکایت میکند وبطور واضح ثابت می سـازد کـه دیگـر دشمن تاب مقاومـت را ازدسـت داده انـد ونبایـد بیشـتر ازاین خود را قربانی اهداف شوم کفار بسازند،ان شاء الله دیری نخواهد گذشت کـه پـرچم سـفید مـزین بـا کلمـه توحید بر فراز تمام ادارات دولتی در کل کشور به اهتزاز خواهد درآمد.

فشرده اینکـه سرعـت امـواج وگسـترش عملیـات عمری نشان میدهد که اگر خدا بخواهد آینده افغانستان روشن وباثبات خواهد شد،وملت افغان بسـیار بـه زودی خاک غصب شده خود را از چنگـال صـلیبیان آزاد مـی سـازند،عملیات موفـق عمـری کـه بـا خـود الهـام وپیـام اشـکاری از آزادی کشـور عزیـزدارد هماننـد صـاعقه آسمانی بردشمنان دیـن ونوامیسـی اسـلامی نـازل وتـأثیر گذاشته است،وهمه دسایس شان رانیز بـه ناکـامی مطلـق مواجه گردانیده است،وان شاءالله العزیزاشغالگران آرمان شوم خویش را بخاک خواهند برد.

# دجهاد فقهي مسائل

مفتي ابو محمد (حقاني)
[۳۱مه برخه]

## کفارو سره دجګړې د اختتام اسباب:

## اسلام منل، جزیه ورکول، یا سوله!

**دسولې پر معاهده دفاسدو شرطونو اغیز:**

دفقهاووتر مینځ پدې مسئله کې اختلاف دی، چې دسولې په معاهده یا تړون (عقدالهدنة) کې چې کله شروط فاسده ولیکل شي آیا دا عقدصلح یا دسولې تړون پرې فاسد شو او که نه؟ که دبیاعاتو او معاوضاتو عقودو ته وکتل شي، نو باید چې فاسد شي ،ځکه هلته چې کله فاسدشرط ورسره منضم شي، نود ثمن دجهالت له امله دبیعې دفساد صورت رامینځ ته کیږي او که دمناکحاتو دعقودو په شان وي ،نو بایدچې دمهرونودفساد په صورت کې دنکاح دعقد غوندې باطل نشي.، نو داچې دا دسولې عقد دی او خپله جلا او بیل حکم لري،نو پدې دول یې تفصیل په (الموسوعة الفقهية )کې ددې کتابونو (الفتاوى الهندية ۲ / ۱۹۷، ،مطالب أولي النهى ۲/ ۵۸۷، ،المغني لابن قدامة ۸ / ٤٦٦ ، ،الحاوي للماوردي ۱۸ / ٤١٢ ، ،مغني المحتاج ٤ / ٢٦١ . حاشية الشرقاوي على التحرير ۲ / ٤١٩ ط الحلبي ، ،المغني ۸ / ٤٦٦ ، ،الدسوقي ۲ / ۲۰٦ ، ،الخرشي ۳ / ۱٥۰ ،اومغني المحتاج ٤ / ٢٦٣ . په حواله پداسې عبارت رانقل شوی :

اخْتَلَفَ الْفُقَهَاءُ فِي فَسَادِ عَقْدِ الْهُدْنَةِ عِنْدَ اقْتِرَانِهِ بِشَرْطٍ مِنَ الشُّرُوطِ الْفَاسِدَةِ . فَذَهَبَ الْحَنَفِيَّةُ وَالْحَنَابِلَةُ فِي الْمَذْهَبِ ، وَالشَّافِعِيَّةُ فِي مُقَابِلِ الصَّحِيحِ إِلَى أَنَّهُ لَوْ شُرِطَ فِي عَقْدِ الْهُدْنَةِ شَرْطٌ فَاسِدٌ بَطَلَ الشَّرْطُ وَلا يَجِبُ الْوَفَاءُ بِهِ وَلا تَبْطُلُ الْهُدْنَةُ (۳) لأَنَّهَا لَيْسَتْ كَالْبُيُوعِ مِنْ عُقُودِ الْمُعَاوَضَاتِ الَّتِي تَبْطُلُ بِفَسَادِ الشَّرْطِ ؛ لِمَا يُؤَدِّي إِلَيْهِ مِنْ جَهَالَةِ الثَّمَنِ ؛ وَلَيْسَتْ بِأَوْكَدَ مِنْ عُقُودِ الْمُنَاكَحَاتِ الَّتِي لا تَبْطُلُ بِفَسَادِ الْمَهْرِ وَذَهَبَ الْمَالِكِيَّةُ وَالشَّافِعِيَّةُ عَلَى الصَّحِيحِ وَالْحَنَابِلَةُ فِي وَجْهٍ إِلَى فَسَادِ الشَّرْطِ وَالْعَقْدِ مَعًا ، أَمَّا فَسَادُ الشَّرْطِ فَلأَنَّهُ أَحَلَّ حَرَامًا ؛ وَأَمَّا فَسَادُ الْعَقْدِ فَلاقْتِرَانِهِ بِشَرْطٍ مُفْسِدٍ ...) دپورتني عبارت خلص مفهوم :دسولې په معاهده کې دفاسدو شرطونودليکلو او اقتران له امله دسولې دتړون دعدم نفاذاو انحلال یا فساد په باب فقهاوو اختلاف کړی ،احناف علماء رح ، حنابله فی المذهب او شوافع علماء رح دخپل بل صحیح شوي قول په مقابل کې

داخبره کوي ،چې که چیرته دسولې په تړون کې فاسد شرط ولیکل شي ،نو دا شرط فاسد دی او پدې شرط باندې وفا ضرور نده ،خودسولې معاهدې ته پرې زیان نه رسیږي ، داځکه چې دا نه دبیوعاتو په شان ده چې دفاسدو شرطونوپه وجه دڅمن دجهالت له امله فاسده شي او نه دمناکحاتودعقودو نه موکده ده ،چې دمهر په فساد سره باطلیږي ، او مالکیان علماء رح ،شوافع رح او حنابله علماء رح په یوه وجه داسې وایي ،چې شرط او دسولې عقد دواړه فاسد دي ،داځکه چې دې فاسد شرط سره دحرامو حل راغلی دی اودې سره فساد راځي او دسولې دتړون فساد لدې امله راغلی، چې دا دیوه مفسد شرط سره مقارنت لري .

## دسولې دتړون حکم (صفت)

دسولې دمعاهدې یا عقدالهدنه کې دفقهاوو ترمینځ اختلاف دی ،احناف علماء رح فرمایي چې دسولې تړون عقدلازم نه دی ،بلکې دنقض احتمال پکې شته دی، کله که دمسلمانانوقیادت دمعاهدې په ماتولویا نقض کې خیر وکوت او مسلمانانوته یې پکې ګټه ولیده ،نو نقض یې بیا جایز دی او جمهور علماء رح فرمایي چې دا عقد لازم دی ،کله چې عقد صحیح واقع شي، نو نه امام عقدنقض کولای شي اونه دده نه پس نورو بادشاهانوته ددې جواز شته ،چې دا دسولې معاهده ماته کړي ،ددې مسئلې تفصیل په الموسوعة الفقهیة کې پدې ډول دی : اخْتَلَفَ الْفُقَهَاءُ فِي صِفَةِ عَقْدِ الْهُدْنَةِ أَهُوَ لازِمٌ أَمْ جَائِزٌ ؟ فَذَهَبَ جُمْهُورُهُمْ - الْمَالِكِيَّةُ وَالشَّافِعِيَّةُ وَالْحَنَابِلَةُ - إِلَى أَنَّهُ عَقْدٌ لازِمٌ ، فَإِنْ وَقَعَ صَحِيحًا فَلَيْسَ لِلإِمَامِ الْعَاقِدِ وَلا لِلأَئِمَّةِ بَعْدَهُ نَقْضُهُ ، وَلَزِمَ الْوَفَاءُ بِهِ حَتَّى تَنْقَضِيَ الْمُدَّةُ ، أَوْ يَصْدُرَ مِنْهُمْ مَا يَقْتَضِي الانْتِقَاضَ مِنْ قِتَالٍ أَوْ غَيْرِهِ لِقَوْلِهِ تَعَالَى : { يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَوْفُوا بِالْعُقُودِ } سورة المائدة / ١ ..........

دعبارت خلص مطلب دادی چې :دسولې دمعاهدې دحکم په باب چې دا عقد لازم دی که جایز ؟دفقهاوو ترمینځ اختلاف نظر موجود دی،جمهور فقهاء ـ مالکیان رح ،شوافع رح او حنابله رح پدې نظر دي، چې دا عقد لازم دی ،تر خپلې ټاکلې مودې پورې پدې عقد وفا ضرور ده، نه دمسلمانانو هغه بادشاه چې دا معاهده یې لاسلیک او نه ترې وروستنیو ائمه وو ته ددې جواز شته، چې ددې معاهدې نقض وکړي ،مګر هغه وخت بیا پرې وفا نده واجب ،چې دمقابل لورې نه داسې کار صادر شي، چې هغه ددې مقتضي وي، چې دعقد انتقاض یا دعقد شکنۍ سبب شي ،لکه دقتال او جګړې پیل چې ددوئ لخوا وشي ،نو پدې صورت کې بیا دسولې معاهده ورسره ماتیدای شي ،ځکه الله تعالی فرمایي : { یَا أَیُّهَا الَّذِینَ آمَنُوا أَوْفُوا بِالْعُقُودِ } (سورة المائدة / ١) ، وَقَوْلِهِ عَزَّ مِنْ قَائِلٍ : { فَأَتِمُّوا إِلَيْهِمْ عَهْدَهُمْ إِلَى مُدَّتِهِمْ } (سورة التوبة / ٤ .) همداسې که چیرته دا دتړون عاقد امام وفات شو،نو هم به ددې معاهدې فسخه نه کیږي ،البته که چیرته دسولې دعقد فساد په نص یا اجماع سره ښکاره شو، نو فوري به یې نقض کوي اومعاهدو کافروته به ددې نقض خبر ورکول کیږي، ترڅو هغوئ خپلو محفوظوځایونو ته ځانونه ورسوي ، که

امام دځان لپاره دسولې په تړون کې داسې کومه ماده دصحت شرط وګرځوله چې لزوم یې منفي وو،نو شوافعو او هم دحنابله وونه قاضي ابويعلى رح ددې په جواز او نور حنابله يې منعې يا نه جواز باندې معتقد دي، همداسې امام ته ددې هم جواز شته، چې دسولې تړون دبل کوم مسلمان تر مشيئت پورې معلق کړي، خو دا په هغه صورت کې چې دا درې شرطونه پکې موجود وي ١-چې دا ددين په چارو کې داجتهاد دخاوندانو دزمرې نه وي ٢-چې ددنيوي اموراتوپه تدبير کې داصحاب الرأى نه وي ٣-چې په حقوق الله او حقوق العباد کې دامانتدارو خلکو له ډلې څخه وي ،که چيرته پکې دا پورتنې شرطونه پوره شول، نو دسولې تړون دده دمشيئت او خوښې پورې موقوف کيداى شي، که نه بيا نشي کيداى ،حنابله فى المذهب وايي : چې که چيرته امام دځان لپاره دسولې په معاهده کې داسې شرط ولګاوه، چې زه به يې دنقض صلاحيت لرم ،نو ددې عقد الهدنه حيثيت نشته او نه صحيح دى ،ځکه دا شرط دمعاهدې له مقتضياتو سره اړخ نه لګوي ،ددې داسې مثال دى ،لکه يو سړى دبيع يا نکاح په عقد کې داسې شرط ولګوي ،چې دا نا روا ده.

احناف فقهاء رح فرمايي :چې دسولې معاهده غيرلازم او دنقض احتمال يې شته ،کله چې دمسلمانانوبادشاه کفارو سره په سوله کې دمسلمانانوخيراو ګټه وليده، سوله دې ورسره وکړي او که بيا يې ضرر يا تاوان وليد، نقض دې يې کړي ،دا ځکه په انتهاء کې داسې څه راښکاره شول، چې که احيانا په پيل کې وى ،نو له سره به يې ورسره سوله نوى کړى او بل داچې کله مصلحت بدل شو،نوبيرته يې نبذ جهاد ته وشو،نو جهاد به ورسره پيل شي ،خو کفارو سره په عهد صلح پاتيدنه صورةً او معنىً دجهاد ترک دى او دايو داسې کار دى ،چې نا جايز اوهيڅا يې دجواز په باب قول ندى کړى .

کله چې امام دسولې دتړون دنقض پريکړه وکړه، نو ضرور ده، چې مقابل لورې ته ددې اعلان وکړي او هغوئ پرې خبرکړي ،چې ددوئ سره تړون مات شوى او دومره وخت ورته ورکړي، چې هغوئ پکې خپلو محفوظوځايونو ته ځانونه ورسوي ،داددې لپاره چې غدرپکې ورسره رانشي_ او دا غدر په عموماتو سره حرام دى لکه نَحْوَ مَا صَحَّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ حَدِيثِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ : قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : " أَرْبَعُ خِلَالٍ مَنْ كُنَّ فِيهِ كَانَ مُنَافِقًا خَالِصًا : مَنْ إِذَا حَدَّثَ كَذَبَ ، وَإِذَا وَعَدَ أَخْلَفَ ، وَإِذَا عَاهَدَ غَدَرَ ، وَإِذَا خَاصَمَ فَجَرَ " (أخرجه البخاري ( فتح الباري ٦ / ٢٧٩ ـ ط)

دسولې دمعاهدې دنقض په باب به دومره وخت دوئ ټولوته او يا ددوئ امير ته ورکول لازم وي، چې هغه پکې دخپل هيواداتباع دسولې دماتيدو نه مطلع يا خبرکړي ..........

نوربيا......

# مطبوعاتي جهاد

داسلامی نړۍ ستر عالم (شیخ ابو قتاده حفظه الله)

یادښت: له شیخ ابو قتاده رحمه الله څخه دا پوښتنې د شام مجاهدینو کړي، خو څنګه چې مذکورې پوښتنې هماغه دي، چې د افغانستان د مجاهدینو لپاره هم ګټورې دي، نو د افادیت د تعمیم لپاره مو چاپ ته وسپارلې!

الحمد لله والصلاة والسلام علی رسول الله ومن واٰله.

علامه شیخ ابو قتاده صیب! الله جل جلاله دې ستاسې حفاظت او ساتنه وکړي او الله جل جلاله دې تاسې په حق باندې ثابت قدم لري.

شیخ صیب! د شام په جهادي ساحه کې ځینې ملګري په مطبوعاتي برخه کې کار کوي دا ځینې پوښتنې یې تاسې ته رالیږلي او ځواب ته مو منتظر دي الله جل جلاله دې تا ته ښه جزاء درکړي.

پوښتنې: زموږ فاضل شیخه! الله جل جلاله دې ستا حفاظت او ساتنه وکړي!

السلام علیکم ورحمت الله وبرکاته:

(۱) کوم مجاهد چې په جهادي مرکزونو کې مطبوعاتي فعالیت لکه (جهادي فلمونه ایډیټ کول یا انځورونه ډیزاین کول او داسې نور) کوي آیا هغه ته د مرابط في سبیل الله اجر ورکول کیږي، زموږ مقصد هغه احادیث دي چې د رباط في سبیل الله د فضیلت په اړه راغلي، لکه دا چې (د الله جل جلاله په لاره کې یوه ورځ رباط د حجر اسود په څنګ کې د لیلة القدر د شپې له سبا کولو څخه زیات فضیلت لري؟

او آیا که چیرته کوم مجاهد په دغه حال کې ووژل شي، ددې عمل اجر د قیامت تر ورځې پورې ورکول کیږي؟

(۲) کوم ملګری چې په مطبوعاتي برخه کې په روزنه کې تقصیر کوي او ددې تقصیر له امله د جهاد د مخالفانو رسنیز فعالیت یا د غلاتو رسنیز فعالیت یا د نورو فعالیت غالب شي او په نتیجه کې یې ګڼ شمیر ځوانان د غلاتو لیکو ته جذب شي، آیا ددې له امله تقصیر کوونکی ملګری ګناهګاریږي؟

ځکه ډیر ملګري په جهادي فعالیتونو کې په رسنیز ډګر کې کار کول نه خوښوي، بلکې جګړه ایز یا د تصنیع او نورو برخو کې په شوق کار کوي.

نو شیخ صیب موږ غواړو چې په دې اړه یو ځانګړې توصیه وکړې تر څو دا برخه همداسې خواره پاتې نشي.

شیخ ابو قتاده حفظه الله په ځواب کې ورته ولیکل:

وعليكم السلام ورحمة الله وبركاته!

زما مسلمانه وروره! پدې ښه ځان پوه کړه، چې داسلام په تاريخ بلکه دملتونو په تاريخ کې دجهاد او قتال لـه سترو کـارونو څخـه رسـنيز فعاليـت او مطبوعاتي کار دی،

د ځان دوجود ثابتولو او دغلبې نيمايې همدا رسنيز فعاليت دی، دا وګورئ زموږ رسول صلى الله عليـه وسـلم حسـان رضـی الله عنـه هڅـوي ترڅـو دمشرکانو هجوه وکړي، او هغـه تـه وايې چې ستا کلام په هغوی دغشو له ګذارونو څخه هم بد لګيږي.

مسلم پـه خپل صحيح کې لـه حضرت عائشـه رضی الله عنها څخه روايت کړی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: دقريشو هجوه کوئ دا په هغوی باندې دغشو له فايرونو څخه هم بد تماميږي، لومړی ابن رواحه تـه يوڅوک ورولیږه چې دکفارو هجوه وکړي، هغـه يې هجـوه وکـړه، رسـول الله پـرې اکتفاء ونه کړه، بيا يې کعب ابن مالک رضی الله عنه ته ورولیږه چې دمشرکانو هجوه وکړي، بيا يې حسان ابن ثابت رضی الله عنه ته ورولیږه، چې کله حسان رضی الله عنه ته ورننه ووت حسان وويل: تاسې ته نږدې ده چې دغه لکۍ وهونکي زمري ته يې راولیږئ (ځان يې له زمري او خپله ژبه يې دزمري له لکۍ سره تشبيه کړه زمری چې کله په قهر شي خپله لکۍ يوه بلې خوا ته وهي) بيا يې ژبه راوويستله يو او بل لوري ته يې وښوروله او ويې ويل: قسم په هغه ذات چې ته يې په حقه راليږلی يې زه به يې په خپله ژبه داسې تارتار کړم لکه څنګه چې پوستکی شکول کيږي، رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل: عجله مه کوه ځکه ابو بکر رضی الله عنه ته دقريشو نسبونه ښه ورمعلوم دي، زه هم په قريشو کې نسب لرم ترڅو زما نسب په لنډه توګه درته وښايې (داسې نـه چې زمـا دنسـب هجـوه وکـړې) حسـان ورغـی بيـا راستون شو او ويې يارسول الله! ما ته يې ستا نسب په لنډه توګه راوښود، قسم په هغه ذات چې ته يې په حقه راليږلی يې، زه بـه ستا نسـب لـه هجـوې داسې روغ رمټ باسم لکـه لـه اوړو چې ويښـتـه باسـل کيـږي،

عائشه رضی الله عنها فرمايي: چې ما لـه رسول الله صلى الله عليه وسلم واوريدل چې حسان رضی الله عنه ته يې ويل: روح القدس جبرائيل به تل ستا تائيد او ملاتړ کوي ترڅو چې ته له الله جل جلاله او دهغه له رسول څخه دفاع کوې.

حضرت عائشه رضی الله عنها فرمايي: چې ما له رسول الله صلى الله عليه وسلم دا هم واوريدل چې ويل يې: حسان يې هجوه وکړه دمسلمانانو زړونه يې هم يخ کړل او خپل زړه يې هم يخ کړ.

همدغه راز رسول الله صلى الله عليه وسلم عمر فاروق رضی الله عنه ته امر کوي چې ابو سفيان تـه داحد لـه غـزا وروسته ځـواب ورکـړي او ځـواب هـم رسول الله صلى الله عليه وسلم ورښيي:

امام بخاري رحمه الله په خپل صحيح کې له براء ابن عازب رضی الله عنه څخه روايت کړی چې موږ داحد دغـزا پـه ورځ لـه مشـرکانو سره مخـامخ شـوو، رسول الله صلى الله عليه وسلم دغشو ويشتونکو يوه ډله په غونډۍ کښينوله او عبد الله رضی الله عنه يې وربانـدې اميـر وټاکـه، (پـه دې اوږد حـديث کـې وروسته راځي) چې ابو سفيان سر پورته کړ او ويې ويل: آيا پـه تاسې کې محمد شته؟ رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: ځواب مه ورکوئ، هغـه وويل: آيا په تاسې کې ابن ابي قحافه (ابو بکر رضی الله عنـه) شـته؟ رسـول الله صـلى الله عليـه وسـلم

وفرمایل: ځواب مه ورکوئ، هغه وویل: آیا په تاسې کې دخطاب زوی (عمر رضی الله عنه) شته؟ بیا یې وویل: دا ټول وژل شوي ځکه که ژوندي وای نو ځواب به یې راکړی وو، عمر رضی الله عنه په خپل ځان تـوان لـه لاسه ورکړ او ویې ویـل: دروا غ دې وویـل: ای دالله دښمنه! الله جل جلاله هغه خلک لا ژوندي



پرې ایښي چې تـا بـه پرې رسوا کړي، ابـو سفیان وویل :هبل (دبوت نوم) لوړ شه، نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل: ځواب ورکړئ، اصحابو وفرمایل: څه ورته وو ایو؟ ویې ویل: ورته وو ایئ: الله جل جلاله لوړ او لوی دی، ابو سفیان وویل: موږ عزی (دبت نوم) لرو او تاسې عزی نه لرئ. نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل: ځواب ورکړئ، اصحابو وفرمایل: څه ورته وو ایو؟ ویې ویل: ورته وو ایئ: الله جل جلاله زموږ مولی دی او تاسې مولی نلرئ.

همدغه راز رسول الله صلی الله علیه وسلم خپل شاعر ته خپل منبر سموي ترڅو دهغه صلی الله علیه وسلم او اسلام په اړه حق کلام وو ایي، نو هغه خلک کومه خوا روان دي چې دا ستر او عظیم کارونه پریږدي او التفات نه ورته کوي؟؟

په امیر باندې لازم او واجب دي چې یوه ډله خلک دې ته فارغ کړي چې په خبرو دحق مرسته وکړي لکه څنګه چې یو مجاهد دټوپک په شپیلئ دحق لپاره مبارزه کوي، که په خپله نه تیاریدل په زور دې یې دې کار ته آماده کړي، که جهاد له دغه ستر کار څخه خالي پاتې شو نو نه موږ خپل ځان چاته ورپیژندلی شو او نه په خپلو دښمنانو رد کولای شو او نه ځوانان او سړي راجلبولی شو چې دسنګرونو او جبهاتو خلاوې ورباندې ډکې کړو.

دغه کار فرض کفایې دی ،که ټولو مجاهدینو پریښود بلا استثناء به ټول ګناهګار وي، دا کار له جهاد او قتال سره برابر دی، بلکې په خپله جهاد دی، عربو به دسفر لپاره ټپه ویونکی کرایه کاوه، رسول الله صلی الله علیه وسلم هم دا کار کړی، نو چې کله یو انسان یا حیوان په خپل سفر کې داسې ټپو او اشعارو ته اړتیا لري، ترڅو په سفر باندې توان پیدا کړي، نو آیا مجاهدین هغه چا ته حاجت نلري ،چې دهغوئ خبرونه او انځورونه او پیغامونه نقل کړي، ترڅو یې زړونه تقویه او نفسونه یې ثبات پیدا کړي؟

لـه هغه چا بـه څوک زیات اجر ولري ،چې تحریض علی القتال کوي، له مجاهدینو دفاع کوي، دهغوی خبرونه نشر کوي، او پدې توګه دډیر مسلمانانو زړونه خوشحالوي.؟

ډیر هغه حق چې مجاهد پکې عملا او علما حقا او صدقا واقع دی، که چیرته ترشا داسې څوک ونلري، چې ویې لیکي او ثبت یې کړي، نو فوت کیږي او اثر یې له منځه ځي.

او قسم په الله که زه دا سې وو ایم ،چې رسنیز فعالیت کوونکي مجاهدین له ډیرو هغو مجاهدینو څخه ستر اجر لري ،چې مخامخ په جګړه کې برخه اخلي، نو نه به ګناهګار شم او نه دا لیرې خبره ده.

زموږ ډیرې هڅې له همدې امله ضائع کیږي او اغیار یې غلا کړي، که چیرته رسنیز کنډ کونه ونلرو، چې په غاړه یې واخلي ثبت یې کړي او په رښتوني بڼه یې نشر ته وسپاري.

ډیر هغه درواغ چې موږ پرې تورن یو ،د بیان په زور او دخلکو له خبرولو پرته یې بله ددفاع لاره نشته.

ډیر مسلمانان ځوانان دګمراه، مبتدع او کافر دښمن مطبوعاتي ځواک په سبب له موږ څخه غلا کیږي.

ډیر کرته موږ د صادقانو له دعاء څخه ځکه محرومیږو ،چې هغوی زموږ له خبرونو څخه ناخبره وي.

ډیر نفسونه هغه وخت ترقي کوي او خوشحالیږي، چې کله هغوئ دا درک کړي، چې مسلمانان زموږ په فتوحاتو او خبرونو خوشالیږي، نو دهغوی نفسونه لازیاتې قربانۍ ، ورکړې او ځان فدا کولو ته تیاریږي، ځکه کله چې هغوی ګوري چې زموږ قربانۍ بې ځایه نه ځي، بلکې پدې سره دمجاهدینو ملاتړ نور هم زیاتیږي، نو په ډیر ښه زړه پرمختګ ځان فدا کولو ته چمتو کیږي.

په رسنیزه جګړه کې هره نوعه تقصیر په نظامي جګړه کې له تقصیر څخه زیات زیان لري، او په مطبوعاتي برخه کې دتیروتنې تاوان هم د جګړې په میدان کې له تیروتنې زیات تاوان لري.

او قسم په الله! کوم مجاهدین چې پدې میدان کې کار کوي او شپه شوګیر کوي، دهغوئ شوګیر د هغه پهره دار له شوګیر سره په اجر کې برابر دی، چې په جبهو او سنګرونو کې پهره کوي، هغه ته خپل اجر هم ورکول کیږي او دهغه په څیر دنورو هم، او هغه ته دهغه عالم اجر هم ورکول کیږي، چې دشریعت دیوې مسئلې دتحقیق او څیړنې لپاره شپه روڼوي، او که پدې حال کې مرګ ورته راغی، چې په اخلاص او دثواب په نیت خپل دې کار ته دوام ورکوي، دی به له خپلو هغو ملګرو سره یوځای راپورته کیږي، چې دبمبارۍ لاندې یا په مرمۍ وژل شوی وي.

او دغه ستر ګه چې په مطبوعاتي فعالیت کې ویښه پاتې کیږي ،دا دهغې سترګې په څیر ده، چې دالله جل جلاله په لاره کې پهره کوي.

زه دنصیحت په توګه دمجاهدینو مشرانو ته وایم ، چې که چیرته کوم داسې ملګری پیدا شو ، چې دمطبوعاتي فعالیت وړتیا لري او په سمه توګه دا کار کولی شي، خو بیا هم ددې کار له کولو ډډه کوي، نو له جهاد او قتال څخه یې منعه کړئ، ترڅو دخپل نفس له خوشحالولو څخه محروم شي، ځکه هغه کار پریښودل چې دجهاد له مصالحو څخه وي او په ځای یې داسې کار کول، چې ده خوند ورکوي، دا یوه نوعه دنفس خوشحالول دي، دشرعي جهاد مقصد ندی.

الله جل جلاله دې ټولو ته دهغو اعمالو دکولو توفیق ورکړي، چې دهغه خوښ او هغه پرې راضي کیږي.

او ټولې ستاینې الله رب العالمین لره دي.

# آیا جدایی سیاست از اسلام ممکن است؟

- نویسنده: داکتر عماد الدین خلیل
- ترجمه: احسان الله همت

(أَمْ لَهُمْ شُرَكَاءُ شَرَعُوا لَهُمْ مِنَ الدِّينِ مَا لَمْ يَأْذَنْ بِهِ اللَّهُ وَلَوْلَا كَلِمَةُ الْفَصْلِ لَقُضِيَ بَيْنَهُمْ وَإِنَّ الظَّالِمِينَ لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ (۲۱)) (الشوری)
و ما همیشه می گوئیم که این حق سیکولارها است تا برای جدائی دین از دولت فراخوانی کنند و بر این روش خود صبح و شام در روزنامه ها، رادیو ها، ماهواره ها، سیمینار ها و کنفرانس ها تاکید نمایند و این که بر مفاهیم حکومت اسلامی چنان بتازند، و برای رد آن و اثبات بطلان آن چنان تلاش ورزند که زبان های آن ها خشک شود و گلو های آنها پاره گردد. و اینکه در این زمینه کتاب های بنویسند و تحقیقاتی انجام دهند. هیچ کسی مانع آنها نخواهد شد، زیرا این چیزی است که آنها از روی قناعت آزاد البته در تصور-غلط- خود به آن رسیده اند.

زمانی که کتاب خدا (قرآن) به این فرمودهٔ خوده (فَمَنْ شَاءَ فَلْيُؤْمِنْ وَمَنْ شَاءَ فَلْيَكْفُرْ) (الکهف:۲۹) حتی به کافران و کفر اجازه می دهد تا موجود باشند، آیا اجازه نمی دهد تا یک گروه موازی از مردم که به خدا و روز آخرت باور دارند لیکن به سیکولاریستی معتقد هستند و برای جدائی دین از دولت فراخوانی می کنند وجود داشته باشند؟!

اما آنان هیچ گاه این حق را ندارند که برای کناره گیری اسلام گرایان از عقیده راسخ خود، در ارتباط به حکومت اسلامی، که در کتاب خدا (قرآن) و سنت پیامبر (ص) او بر آن تاکید شده است تلاش ورزند.

نباید آنها (اسلام گرایان (را دنبال کنند و شدید ترین مقررات و رویه های خون آلود پولیسی را برای مانع شدن آنها (اسلام گرایان) از این قناعت بکار گیرند. درست چنانچه اسلام گرایان به مخالفین خود این حق را میدهند که تا سیکولاریسم را پذیرفته و برای آن فراخوانی کنند، پس بر آنها (سیکیولاریست ها) نیز لازم است که به اسلام گرایان این حق را بدهد که به رابطه اجتناب ناپذیر بین دین و دولت باورمند باشند، برای آن دعوت کنند، و برای پیاده سازی آن در زندگی عملی تلاش ورزند.

اما آیا کسی حق این را ندارد که بپرسد: چگونه سیکیولارها این میلان ذهنی -که نخست- منافی بدیهیات اسلامی است، را توجیه می کنند، که در واقع به عملیه جمع یک مالته با دو سیب که حاصل جمع آن سه باشد شباهت دارد.

در صورتی که روش، پیروی از تجربهٔ مغرب زمین باشد که در آن سیکیولاریسم به عنوان دوای کامیاب برای از بین بردن سلطهٔ غیر منطقی و غیر عملی کلیسا بر قابلیت های دانشمندان و محققان بود، و کلیسا را مجبور به پذیرفتن استدلال های غلط و ارتجاعی نمود .از همین رو این یک اشتباه بزرگ است، زیرک فرانسوی کهنه سال «تالیران» در مورد آن چنین می گوید: ”این

اشتباه است و اشتباه بزرگتر از جرم"، چرا که در اسلام چنانچه محقق معاصر انگلیسی «رام لاندو» در کتاب خود«اعراب و اسلام «می گوید: دین و دانش با هم در جاده ها راه رفت، در حالی که همدیگر را تقویت می کردند، زیرا این هر دو بر وجود خداوند پاک و متعال تاکید می کنند و برای آن تلاش می ورزند.، اما اگر این قضیه به فهم نادرست از مطالب این دین رابطه دارد، و یا عدم آگاهی از اهداف اساسی آن، پس در این صورت آن موقف گیری نیازمند گفتگو است.

آیا فکر میکنید که آنها کتاب خدا را یک بار هم با ذهن باز نخوانده اند .. تنها یکبار؟ که در آن این آیات یکی پی دیگر آمده است: (وَمَنْ لَمْ يَحْكُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ فَأُولَئِكَ هُمُ الْكَافِرُونَ (٤٤))(المائدة)، (وَمَنْ لَمْ يَحْكُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ فَأُولَئِكَ هُمُ الظَّالِمُونَ (٤٥)) (المائدة(، )وَمَنْ لَمْ يَحْكُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ فَأُولَئِكَ هُمُ الْفَاسِقُونَ (٤٧)) (المائدة) آیا فکر می کنید که این آیتی کریمه را که حکم (قانون گذاری) در آسمانها و زمین را به دست خداوند پاک و متعال قرار میدهد: (وَهُوَ الَّذِي فِي السَّمَاءِ إِلَهٌ وَفِي الْأَرْضِ إِلَهٌ وَهُوَ الْحَكِيمُ الْعَلِيمُ (٨٤)) (الزخرف)، آیا فکر میکنید که آنها یک روزی هم به این فکر نشدند که چطور ممکن است احکام شریعت اسلامی را در تمام بخش های فردی و اجتماعی زندگی پیاده کرد؟ مگر این که دولتی موجود باشد و نهادهای آن دست به اجرای این عمل بزند؟!

آیا فکر می کنید که آنها تاریخ اسلام را، با تلاش لازم، نخوانده اند؟ تاریخی که از همان آغاز خود در عصر رسالت در جستجوی یک محیط مناسب برای استقرار دولت اسلامی بود، و چگونگی سفر رسول خدا "ص" به طائف، ارتباط گرفتن به بیشتر از ده قبیله در آنجا، سپس بیعت با انصار در بیعت های اول و دوم عقبه، که تاکید بر لزوم ایجاد یک دولتی که نه تنها بر تطبیق قانون خدا بر روی زمین اکتفا نماید، بلکه - همچنان- برای محافظت آن از خوردگی (درونی)و تجاوز (بیرونی) نیز تلاش ورزد.

بازهم آیا آنها متوجه نشده اند که مسلمانان چگونه در سقیفه بنی ساعده، برای حل مشکل جانشینی، باهم جمع شده بودند، در حالی که هنوز جنازه رسول خدا "ص" خاک سپاری نشده بود. دیری نگذشت که آنها ابوبکر صدیق را انتخاب کردند، که گام های بلندی برداشت، و بعد از او برادران راشد او، که در تایید مفاهیم حکومت اسلامی به نوبه خود قدم های برداشتند

آیا فکر میکنید که آنها حتی یک نگاه معمولی، در منظومه بارور فقه اسلامی در تمام زمینه ها از جمله فقه مقاصد، فقه تعادل، فقه سد ذرائع و مصالح مرسله و فقه فتوا داشته است؟ تا آنها با چشم خود ببینند که چگونه فقه به تمام سوالات خورد و بزرگ مربوط به دولت اسلامی، پاسخ داده است؟

به هر حال، این حق ایشان است که نه خوانند، نبینند و تحقیق نکنند..و این که در مورد این موضوع که مهم ترین موضوع عقیده، فقه و تاریخ اسلامی را تشکیل میدهد نابینا باشند، لیکن هیچ گاه این حق را ندارند که بر مجبور ساختن اسلام گرایان بر کنار گذاشتن آنچه بطور آشکار قضیه مهم دینی است، تلاش ورزند.

آیا این –بار دیگر- اشتباه بزرگتر از جرم نیست؟

در واقع این سیکیولارها آنچه را بر دین روا میدارند که خداوند آن را مجاز ندانسته، پس مرتکب ظلمی می شوند که خداوند بسبب آن وعید عذاب دردناکی داده است و الله بزرگ راست گفته است.

عبدالرزاق حبيبي

# د سپتمبر ۱۱ مه:

## دوولس کاله وروسته هم د امریکا د انتقام اور سوړ نه شو !!

د سپتمبر یوولسمه په عمومي ډول د مسلمانانو او په ځانګړې توګه د افغانستان په تاریخ کې هغه توره ورځ ده، چې د مسلمانانو پرخلاف پکې یوې نړیواله دسیسې رنګ واخیست او د یواړخیزې نړۍ یوازینۍ اتل امریکا پر مسلمانانو را ودانګل. دا هغه کرغېړنه ورځ ده، چې د نړیوال استعمار سرلاري امریکا د خپلو څو زره امریکایانو د وژل کېدو په بهانه د ټولې نړۍ د تسخیر د خوبونو په حقیقت بدلولو لپاره ګام پورته کړ، نړۍ یې په دوه برخو ووېشله یو هغه، چې د صلیب په خدمت کې وي او بل هغه چې د اسلام تر چتر لاندې ژوند کوي. هغوی، چې ځانونه د اسلام اصلي پاسدارن بولي هم د اسلام ځپلو ددې نړیوالې دسیسې- سره یوځای او هر ځای یې د دې دین اصلي پاسداران داسې په بې رحمۍ سره شکنجه او یا هم شهیدان کړل، چې تاریخ به یې هیڅکله هېر نه کړي.

دا چې د سپتمبر د یوولسمې برید چا کړی و، موخه یې څه وه او پایلې یې څه شوې، اوږده کیسه ده،خو څرګنده ده چې امریکا او ملګرو یې په ډېرې سپین سترګۍ ددې برید د ترسره کونکو د نیولو په پلمه، د افغانستان په ډول پر یو بېچاره، جنګ ځپلي او وېجاړ هېواد د خپلو دنګو ودانیو بیا ودانولو لپاره برید وکړ، په ړندو بمباریو یې په زرګونو بې ګناه وګړي، چې د امریکا د شتون څخه هم خبره نه و په ډېرې بې رحمۍ سره په ابدي خوب ویده کړل، ددې هېواد د ډېرو زلمیانو خوبونه یې له خاورو سره خاورې او د ډېرو میندو ارمانونه یې د هغوی له وینو سره یو ځای خښ کړل چې نن دوولس کاله وروسته هم دا لړۍ دوام لري او یوازې څو ورځې وړاندې په کونړ کې د هغه بمبارۍ یادونه کولای شو چې د ناټو ځواکونو د ښځو او ماشومانو په ګډون پکې شا اوخوا پنځلس تنه، په ډېرې بې رحمۍ سره په خپلو وینو ولمبول.

دوولس کاله مخکې امریکا او ملګري یې دلته ددې لپاره راغلل، چې د دوی په اند هغه ګواښ چې لدې ځایه دوی ته متوجه و، له منځه یوسي، ددې هېواد هوايي او ځمکنی حریم یې په خپل کنترول کې واخیست او افغانستان یې په عملي ډول اشغال کړ، خپل پوځونه یې دلته راوستل ، ددې هېواد پر ځمکه اوفضايي خپل کنټرول دومره ټینګ کړ، چې پر هغه پوخ سرک چې دوی د ځان لپاره جوړ کړی و، ددوی له اجازې پرته څوک نشي مخکې کېدی، په هوا کې د افغان الوتکو د پرواز او پوښتنې کولو خو سوال نه پیدا کېږي.

په تېرو د وولس کلونو کې امریکا پرافغانانو هغه کړنې ترسره کړې، چې په تېر تاریخ کې یې ساری نه لیدل کېږي، شوروي پوځونو هم پر دې هېواد یرغل کړی و، په ملیونو یې شهیدان او کډوال کړل ،خو د امریکا ظلمونو له مظلومو افغانانو د یرغلګرو شورویانو ظلمونه هېر کړل، حقایق ترخه وي خو هېرول او بل نسل ته یې نه رسول جنایت او خیانت دی. امریکایي ځانګړیو ځواکونو په توره شپه کې د افغانانو په کورونو بریدونه وکړل او د افغان کولتور او اسلامي شریعت هربرید یې مات کړ،نه یې پر مېرمنو رحم وکړ اونه پرماشومانو،ژوندي خولاپربېږده چې امریکایانو او دهغوی اروپایي متحدینو د افغانانو په مړیو هم رحم ونه کړ،متیازې یې پرې وکړې، ویې سوزول، قرآن کریم یې ورته په تشناب کې وغورځاوه، کانونه یې لوټ کړل، فحشاء یې په ملک کې عامه کړه او... چې دا ټولې هغه کارنامې دي، چې امریکا او ملګرو یې د خپل هدف د لاس ته راوړلو لپاره تر اوسه هم ترسره کوي او دوام ورکوي.

## امریکا په تېرو دولسو کلونو کې څه لاس ته راوړل؟

پر افغانستان د امریکا د برید وروسته په دې هېواد کې ستر بدلونونه تر سترګو شول، خو دا بدلونونه تر ډېره بریده د امریکا په ګټو پورې تړلي و، دا چې په تېرو دوولس کلونو کې امریکا افغانستان ته څه ورکړل او خپله یې څه لاس ته را وړل په لاندې توګه ورته په لنډ ډول اشاره کېږي:

### په ټولنیزه او اخلاقي برخه کې

په افغانستان کې د تعصب اور ته په پراخه ډول لمن ووهل شوه، هغه قومونه چې پخوا یې د ورونو په ډول ژوند کاوه د یو بل دښمنان وګرځېدل، د سیاسي ګټو لپاره هرڅوک د خپل قوم دمخکې کېدو او د بل د حقوقو تر پښو لاندې کېدو هڅه کوي، د شیعه او سني ترمنځ د اور بلولو او جنګ اچولو ته په پراخه توګه کار وشو، د ګاونډیو او غربي سریالونو بازار تود شو او ځوانان او نجونې د هغوی په تقلید روان شول، د دوی په اصطلاح د ښځو حقوق خوندي شول خو هغه حقوق چې

امریکا ورکړي دي، د افغانستان په تاریخ کې په لومړي ځل د کوره تښتېدلو ښځو لپاره امن خونې جوړې شوې چې آن د افغان دولت چارواکي هم پرې اعتراف کوي چې د فحشا او بدلمنۍ مرکزونه دي، ښځې وهځول شوې تر څو په پلرني یا دخاوند په کور کې تر یوه واړه خفګان وروسته هم خپل کور پرېږدي اودغه د امن خونو ته پناه یوسي، د امریکا په مرسته د افغان ځوانانو د ډم سازۍ پروژې پیل شوې، په پوهنتونونو کې د افغان ځوانانو د موسیقۍ او ګډا د زده کړې مرکزونه جوړ شول، د امریکا مداحو رسنیو ته هر ډول ازادي ورکړل شوه، چې د فحشاء د ترویج لپاره څه ډول سریالونه او فلمونه خپروي آزاد دي او آن دوی یې ورته تمویلوي هم، د ایف ام راډیو ګانو له لارې د پېغلو او هلکانو ترمنځ یارانه جوړول یې یو کوچنی مثال دی، د ښځو د حقوقو علمبردارانو او مشرانو هغه کړنې ترسره کړې، چې قلم یې په لیکلو شرمېږي.

## په اقتصادي برخه کې:

پر افغانستان د آزاد بازار اقتصادي سیستم وتپل شو، دا داسې یو سیستم دی ،چې د اکثرو اقتصاد پوهانو په خبره په داسې شرایطو کې د افغانستان لپاره زهر قاتل و، خو ددې لپاره، چې امریکا په آزاد ډول هر څه وکړای شي او هرڅوک تمویل کړای شي او د هر چا لپاره د فعالیت ساحه آزاده وي، نو ځکه یې دلته ډالر واردول هم د آزاد بازار د سیستم سره وتړل، په دې هېواد کې سړکونه جوړ شول، خودا سړکونه تر ډېره بریده هغو سیمو ته جوړ شول، چې امریکا غوښتل خپل عسکر په ټانګ سپاره هلته ورسوي ،تر څو ترې استخباراتي، اقتصادي او... ګټه واخلي، په دوولس کلونو کې افغانستان ونه شو کړای، چې حتی یوه داسې کارخانه جوړه کړي، چې ددې هېواد اقتصاد پرې ورغول شي او آن داخلي حیاتي مواد تولید کړي، مرسته وشوه تر څو وارداتي برخه قوي شي او افغانستان همېشه د خپلو دښمنو ګاونډیو محتاج وي، نن دوولس کاله وروسته هم دا هېواد له نورو هېوادونو هغه اړین مواد واردوي، چې له هغې مخکې یې واردول او که یوه ورځ پرې د ګاونډیو له لورې دروازه وتړل شي نرخونه له اسمان سره خبرې کوي، نړیوال او سیمه ییز سوداګر ددې پر ځای چې دلته پانګونه وکړي کوښښ کوي له دې ځایه پیسې ټولې او په دوبۍ او توکیو کې خپلې پانګه اچونې وکړي، د کار د نه شتون له لامله څوک ځان وژني کوي، څوک د بحرونو د ماهیانو خوراک شول او څوک هم د غرونو د ځناورو. د پربهانه او سرشاره سیندونو په لرلو سره د خپلې برېښنا څښتن نه شو که یوه ورځ هم وارداتي برېښناه بنده شي، د هېواد پلازمېنه او ولایتونه به په توره تیاره کې شپې سبا کوي، امریکا ګاونډي



هېواد ته د برېښنا د هر ډول اړتیـاوو د پوره کولو لپاره سینه ډبوي خو پـه افغانستان کې د نورو لخوا د رغېدو سره یې هم مخالفت کوي ځکه ګټې یې له خطر سره مخ کوي.

## په پوځي برخه کې:

څه موده وړاندې په افغانستان کـې د نـاټو دمشرـ پـه خـبره چـې د پوځیانو د مرګ ژوبلې لړۍ د تحمل لــه حــده وتلــې ، دهمــدې خــبرې ښکاره کوي، چــې د مـلي اردو او پولیسـو پـه روزنــه او تجهیــز کــې ســتونزې شــته ،کلــه چــې امریکایي ځواکونو د ټانګونو، توپونـو او د بي ۵۲ الوتکو سره سره هغومره تلفات ولیـدل او لا یـې هـم وینـي نـو افغـان مـلي اردو تـه بـه د یـو ټوپـک، راکټ،پیکا او بېکاره پوځي موټرو سره ولي دومـره مـرګ ژوبلـه نـه اوړي؟ دلتـه کلیـوالي ملېشــې د اربکیانو او یا محلي پولیسو په نوم جوړې شوې او په کلیـو کلیـو کـې جنګونـه پیـل او د کورونـو او قومونو ترمنځ دښمنۍ پیدا شوې، امریکا افغانستان ته په راتګ سره ددې هېواد هوایي ځـواک پخـواني پاتې شوې الوتکې په ټولیز ډول له منځه یـوړې او هیڅ یې هم ورته پرېښنودې، داسې الـوتکې، چـې د افغانســتان د شرایطــو سره برابــرې وې او افغــان پیلوټانو ورسره بلدتیا لرله، خپلـه یـې مـلي اردو تـه داسې الوتکې ورکړې، چې د څو ورځـو پـه تېرېـدو سره له منځه ولاړې په افغانستان حساب شوې خـو بې ګټې.

## په تعلیمي برخه کې:

افغانستان یو وخت د سیمي په سـطحه د لـوړ تعلیمي سیستم او تجهیزاتـو لرونکـی و، خـو تېـرو کورنیو جګړواو وروسـتیو نـا امنیـو دغـه هېـواد د سیمي او یا هم د نړۍ په کچه د بې سـوادۍ کنـدې ته ورټېل واهه ، امریکـا لـه خپـل راتـګ وروسـته دافغانستان د بیا رغونې او جوړولو سینه ډبوله خـو هیڅکله یې هم د کدرونو په روزلو کې مرسته ونـه کړه او نه به یې هم وکړي، په هېواد کې په زرګونـو ښوونځي جوړ شول خو تعلیمي سـطحه دې سـویې ته ورسېده، چې له پوهنتون فارغ ځوان املاء هم نه شي لیکلی، پـه سـلګونو خصـوصي پوهنتونونـه او

مکتبونه جوړ شول ،خو د اکثرو سوداګریزه برخه په تعلیمي برخې مخکې ده، مختلف تجارتونه پکې روان دي، وظایف او دندې هم د لیاقت پر ځای روابطو پورې وتړل شوې، هغه ځوان چې استعداد لري او د بورس او یا هم د شخصي لګښت له لارې یې ځان یو ځای ته رسولی د کار د نه پیدایښت له لامله له روحي او رواني مشکلاتو سره مخ شوی دی، وظیفه او کار د هغه چا لپاره دی، چې یا خو وزیر وپېژني او یا هم رئیس، وزارتونه په اشخاصو او حزبونو ویشل شوي دي او هر هغه سړی تکړه دی، چې خپل کسان په یوه اداره کې تر بل ډېر وګوماري.

## په روغتیایي برخه کې:

افغانستان ته په تېرو دوولسوکلونو کې د ملیاردونو ډالرو په راتګ سره سره بیا هم د کرزي په خبره د داسې ډاکټر خاوند نه شو، چې د روغتیا وزارت یو ماشین وچلوي، نو شخصي- روغتونونه او یا هم دعامو افغانانو په خدمت کې د روغتونو او ډاکټرانو به څه حال وي، وایي چې د افغانستان له لوري په هند کې کوزېدونکی الوتکې ته امبولانس وایي، له دې لامله، چې هلته تلونکي ټول افغانان دعلاج لپاره ځي، په پېښور کې د نارت ویسټ او رحمان روغتونونو ته په ننوتو خو داسې ښکاري لکه دغه روغتونونه چې په کابل کې وي، ځکه ټول مراجعین یې افغانان وي ، ډېره ساده دوا هم له بل هېواد واردېږي.

همداسې یې دا نورې برخې هم درواخلئ.

## ګټه چا وکړه؟

ګټه هغه چا وکړه، چې دوولس کاله وروسته هم د سیمې د کنترول، د استخباراتي او پوځي معلوماتو د راټولولو او هم د نورو د وېرولو او خپل نفوذ د ساحې دپراخولو لپاره په پراخه پیمانه پرته له هر ډول څارنې او قید او شرط دلته پوځي حضور لري، ګټې یې خوندي او له تنخوا پرته خادمان لري، له دې ځایه هر وخت او هر ځل چې وغواړي هر څه انتقالولی شي او هر چېرته پرواز کولی شي، لکه د خپل هېواد پوځي اډې او خپل شخصي حریم لري، هیڅوک ترې د تګ او نه هم د راتګ پوښتنه کولی شي، هر وخت چې وغواړي هر ډول پوځي وسایل او تجهیزات دلته راوړی او هم یې ازمویلی شي، له دې هېواده چې هر چېرته وغواړي حمله کولی شي او دا هېواد له خپلو ګاونډیو سره هر وخت په جنګ اچولی شي، ددې دومره تفصیلاتو نه وروسته اوس تاسو ووایئ چې چا ګټه وکړه او چا تاوان؟

***

# داسلام غزوات اوسرایا

## دبــدر مَــوعِد غــزوه

ابوظهیر

ذات الرقاع غزوې څخه له ستنیدو وروسته رسول الله ﷺ څه موده په مدینه منوره کې مقیم و، داحدنه بیرته تلو پــه مهــال یــې لــه ابوسفیان سره ژمنه کړېوه چې راتلــونکی کــال بدر ته دواړه غاړې د جنګ لپــاره راځــي، پــه دې وجــه رســـول الله ﷺ پیــنځلس ســوه صحابه ځان سره کړل اود شعبان په میاشت کې دبدر په لوري روان شو، درسیدو وروسته اتــه ورځې شو، بل پلوته ابوسفیان هم دمکي څخــه دخلکو سره یوځای ﴿مرا لظهــران پــورې راغــی، خوبدر ته دراتلو همت یې ونکړ له هم هغه ځایه په دې ویلو سره بیرته وګرځید چې:

سږ دقحطۍ او ګرانــۍ کــال دی دجنــګ او جګړې کال ندی.

رسول الله ﷺ داتو ورځــو انتظــار وروسته چې کله دمقــابلې څخــه نــاهیلی شــو نودجنګ او جګړې پرته مدینې منورې ته ســتون شو.(ابن هشام ۲ټوک ۱۳۶مخ)

ابوسفیان دبیرته تلو په مهال ویلي و: چــې راتلونکی کال به په بدر کې بیا سره جنګ کــوو، خو سینه کې دننه دهغه زړه مرعوب و، له زړه یې غو ښتل چــې رســول الله ﷺ بدرتــه رانشي څو دشرمندګۍ او خجالت نه خلاص شم. او دجګړې څخه دډار تور پــه مســلمانانو پــوري شي.

دنعیم بن مسعود په نوم یوتن چې مــدینې ته روان و، هغــه تــه یــې پریمانــه مــال دولــت اومانه، چې مدینې ته ورسي هلته په مسلمانانو کې داخــبره مشــهوره کــړه چــې دمکــي خلکــو دمســلمانانو سره دجنــګ لپــاره یولــوی لښــکر جمعه کــړی نــو ستاســو لپــاره غــوره داده چــې دقریشو سره جنګ ته ونه وزی،دابوسفیان هدف دا و چې کله دا خبره مشهوره شي مسلمانان به وډار شي او دجنګ لپاره به را بیرون نشي ( کوم تــه چــې دنــن پــه اصــطلاح پروپاګنــد ویــل کیــږي)لیکن بــرعکس ددې پــه اوریــدو پــه مسلمانانو کې ایماني جذبات نور هم راوپاریدل او دحسبنا الله ونِعمَ الوَکِیل په ویلو سره دبدر پــه

لور روان شــول او دکــړي وعــدې سره سم بدرته ورسیدل، اتفاقاً هلته یو ډېر لــوی بــازار جــوړو، مســلمانانو پکــې تجارتي مالونه وپلورل او ځیني وپیــرل په دې توګه له ښو پریمانــه ګټــو سره یوځــای او پــه خیــر اوبرکــت مــدینې منورې ته ستانه شول.



په دې اړه دا آیت نازل شو:

اَلَذین اســتَجَابوا لِلہِ والرســولِ مِــن بعــدِ مــآ اَصابهُم القَرحُ لِلَذِین احسنوا مِنهُم واتَّقَــوا اَجــرٌ عظیم.اَلَّذین قَال لَهُمُ الناسُ، انَّ الناس قَد جمعــوا لَکُم فاخشَو هُم فَزادَهُم اِیمَانا وقالوا حَسبُنَا اللهُ وَ نِعمَ الوَ کِیل فَا نقَلَبُوا بِنعمةٍ مِــنَ اللهِ وَ فَضــلٍ لَّــم یَمسَسهُم سُوءٌ وَاتَبعُوا رِضوَانَ اللهِ وَاللهُ ذُوفَضلٍ عَظِیم.( الِ عمران ۱۵۷ایت)

**ځیرنه:**

پــــه دې ایــــت کــــې د دروغــــو خــــبرو مشهوروونکي الله تعالی شیطانان یاد کړي.

اِنمّا ذلُکم الشیطنُ یُخَوِفُ اَولیاءهُ فلاتَخَافوا هُم وخَافونِ اِن کُنتُم مُؤمِنین.

الله تعــالی ددې پروپاګنــد عــلاج اوځــواب داسې وکړ چې مسلمانانو تــه یــې وښــوده چــې تاسې دخپل وس او توان سره سم دجهاد او قتال لپاره ځانونه تیار کړئ او حسبنا الله ونِعم الوَکیل ولولئ یعنې په الله ډاډ وکــړئ او معــاذالله داســې هیڅکله مه کوئ چې دشیطان ددې دروغــو پــه ځواب کې تاسې هم دروغ وایاست بیا څــه ګټــه ده؟ اسلام دخپلو دښمنانو پــه اړه هــم د دروغــو ویلو اجازه نه ورکوی.

## د دُومَةُ الجَندل غزوه:

دهجرت په ۵کال ربیع الاول کې رســول الله (صَلَّىٱللَّهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ)ته خبر ورسید چې دُومة الجَندل ( دادیوې سیمې نــوم دی چــې دمــدینې منــورې څخه دپینځلس ورځو په مسافت لرې ده،او لــه دومة الجندل څخه ددمشق پورې دپنځــو ورځــو مزله لار ده زرقاني ۲ټوک ۹۵مخ (خلــک غــواړي په مدینــه منــوره بانــدې حملــه وکــړي، رســول الله (صَلَّىٱللَّهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ)دربیع الاول په ۲۵ مــه نیټــه د دومة الجندل په لور کوچ وکړ ، کــوم خلــک چــې راټول شوي وو هغــوی درســول الله صَلَّىٱللَّهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ دروانیدو خبر په اوریدو تیت شــول اورســول الله صَلَّىٱللَّهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ دربیع الثاني په ۲۰مــه نیټــه بیرتــه راستون شو(طبقات ابن ســعد ۲ټــوک۲زرقــاني ۲ټوک ۹۵مخ)

مولوي محمد نعيم جليلي

# سیکولریزم

## د لویدیځ په خدمت کې!

کله چې په اسلامي خاورو د لویدیځ مستقیم عسکري استعمار پای ته ورسید، نو د دغو ټولنو واک هغو فکري سیکولر ډلګیو ته وسپارل شو، چې هدف او موخه یې د ښوونې، کلتور، سیاست، اقتصاد، او ټولنیزه برخه کې د دغو ټولنو غربي کول وو.

دا کار په تصادفي توګه سرته ونه رسید، بلکې له کله نه چې استعمار په دې پوه شو، چې اسلامي ټولنې کرار کرار راویښیږي او نور د نظامي شتون او استعمار لپاره پلمه او بهانه نه پاتې کیږي، په لویدیځ کې یې د دغو سیکولر عناصرو د روزنې لپاره ځانګړي مراکز پرانستل چې مستشرقینو یې مشري کوله او د داسې افرادو او ډلګیو په روزنه یې پیل وکړ ،چې نومونه یې اسلامي او فکرونه یې آن له لویدیځوالو هم مزخرف او تند وو. په دې اړه تر ټولو زیاته پاملرنه یې مصر ته وکړه، ځکه چې په اسلامي ټولنو کې مصر په علمي لحاظ مخکښ ؤ، او د ازهر له برکته یې په خواوشا ټولو اسلامي هیوادونو ځانګړی اغیز پروت ؤ.

دغو ډلګیو څو لسیزې په اسلامي هیوادو واکمني درلوده، چې عمومي لاس ته راوړنې یې، استبداد، ټولنیز فقر، علمي او د تکنالوژۍ په ډګر کې وروسته پاتې والی، د ژوند په هر اړخ کې په لویدیځ اعتماد.. او داسې نورې په لسګونو ستونزې او ناخوالې وې.

د لویدیځې مشروع تر ټولو ستره بریا په رسنیز ډګر کې وه، چې د تل لپاره به یې ولسونو ته په ډیره سپین سترګۍ درواغ ویل او دنده یې په دریو ټکو کې خلاصه کیده، لومړی به یې دغو سیکولر عناصرو ته د آزادۍ د اتلانو په نامه تقدس ورکاوه او هغوی به یې په کاذبو او جعلي اتلولیو ستایل، دوهم کار یې د لویدیځ د لویې، بشردوستۍ او رحمدلۍ ډنډوره غږول وو او دریمه وظیفه یې بیا ولسونو ته د خیالي جنتونو دروغجنې وعدې وې.

دا هغــه مهــال ؤ ،چــې خپلــه پــه لويــديځو ټولنوکې نور د دوی بدرنګه څېره بربنډه شوې وه، هلته يې په مقابل کې د کمــونيزم پــه بڼــه قــوي غبرګون راپورته شوې ؤ، له همدې کبله يو شــمير اسلامي هېوادونه د دغه بــلاک سره ودريــدل او د اسلامي ټولنو لپاره يو بل داخلــی سرخــوږې پيــدا شو.

خو کله چې کمونيزم د ظلم او تاړاک آوازه په نړۍ کې خپره کړه، د ساړه جنګ پر مهال لويــديځ هم ترې په وېره کې شو، نو په يو شمير اســلامي هېوادونــو کــې اســلامي خوځښــتونو لــړه ســاه واخيسته ،چې په دې سره په ټولنو کــې اســلامي روح راژوندی شــو،کرار کــرار ولســونو اســلامي خوځښتونه وپيژندل او باور يې پرې زيات شو،خو د ساړه جنګ پای ته رسيدو سره سم يو ځــل بيــا لويديځ اسلامي نړۍ ته مخ کړ، او په خپل بشــپړ ځواک يې د اسلامپالو په ځپلو پيل وکــړ، دا هغــه مهال ؤ چې ولسونو د اسلامي حرکتونو سره تړاو پيــدا کــړی ؤ، لــه دې کبلــه د لويــديځ بريخــې (ســيکولران) د اســلامي ولســونو سره لاس او ګريوان شول، پاځونونه وشــول او د اســتبداد يــو شمېر ځلي او بتان را وپرځيدل، خــو يــو ځــل بيــا لويديځ چې په سر کې يــې امريکــا ده، پــه ډېــره سپين سترګۍ خپل ټول شعارونه تر پښــو لانــدې کړل، بشــري حقوق، ډېموکراسي او ولســواکي، د بيان آزادي او ديته ورتــه شــعارونه يــې دړې وړې کړل، د ولسونو په آرمانونو يې پښې کيښــودې او هڅه يې وکړه، چې يا خو دغه ولســونه د داخــلي جګړو په کرغيړنه بلا اخته کړي او يا هم که کــوم ولس هوښياري وکړي، هلته د کودتــاوو لــه لارې مشروع حکومتونه راوپرځوي.

پرون په مصر کې د سيسي کودتــا او نــن د ترکيې د ناکامې کودتا هڅه د همدغه لړۍ تسلسل ؤ.

جالبه دا ده، چــې کلــه هــم د لويــديځ دغــه بدرنګه څېره خلکو تــه ورلوڅــه او افشــاء شي، د لويديځ روزل شوي شاګردان بيا وايي چې دا هسې تش خيالونه او وهمونه دي، لويديځ کې هېڅ ګناه نشته ،ګناه په خپله د مسلمانانو ده

## د لويديځوالو جادوګرانه کمال:

د غربي مشروع طبيعت بلکــې کــمال دا دی چې خپل اصلي مقاصد او مــوخې خلکــو تــه نــه څرګندوي، ځکه چې د هغــوی اصــلي مقاصــد او اهداف د اسلامي ټولنو د انساني فکر، تګــلارې، او ارزښتونو سره په ښکاره په ټکر کې دي او جذري اختلاف ورسره لري،له دې کبله لکه څرنګــه چــې قرآن کريم د منافقينو اوصاف بيــانوي، کــټ مــټ غربيان له همدې اسلوب څخه کــار اخــلي. قــرآن کريم وايي: ( و من الناس من يعجبــک قولــه فــی الحياة الدنيا ويشهدالله على ما في قلبــه وهــو ألــد الخصام , و إذا تولى سعى في الأرض ليفسد فيهــا و يهلك الحرث والنسل, والله لايحب الفساد (ځينــې له خلکو هغه دي چې د خولې وينا يې تا په تعجب کې اچوي او ستا خوښيږي او الله تعالی پــه خپــل

اخلاص او زړه باندې شاهد ګرځوي، په داسې حال کې چې هغه تر ټولو ستر دښمن دی، کله چې دوی په زمکه کې خپاره شي نو فساد کوي، نسلونه او فصلونه تباه کوي ، او الله تعالی فساد نه خوښوي.

له همدې کبله لويديځ هڅه کوي ،چې د اسلامي ټولنو داخل ته د ننوتلو داسې پټې او ناڅرګندې لارې چارې ولټوي چې په تدريجي ډول يې خپلو اهدافو ته ورسوي، او له مخامخ ټکر څخه ځان ساتي.

په عامه توګه هغوی په دوه ډګرونو کې پټ کار کوي.

**لومړی: د فکر او منهج په ډګر کې:**

د فکر او تصور د تغيير او بدلون لپاره هڅه کوي، چې د اسلام سمه بڼه د مسلمانانو په ذهن کې مغشوشه او مشکوکه معرفي کړي، د اسلامي شريعت د يو شمېر مفاهيمو، احکامو او ارزښتونو په اړه د تشکيک او اختلاف اچولو له لارې هڅه کوي چې د شريعت قداست، احترام او درناوی د مسلمانانو له زړونو وباسي، کله ناکله د فقهي جزئي اختلافاتو په رابرسيره کولو داسې ښيي چې ګوندې دغه احکام هسې د فقهاوو نظريات او آراء دي او اسلام د يو شمېر کلي مقاصدو نوم دی، چې هر څوک کولې شي د خپل وخت د غوښتنو سره سم ترې د خپل ځان لپاره حلال او حرام راوباسي.

او کله بيا دا هڅه کوي چې په اسلامي ټولنو کې د دغو فقهي اختلافاتو خبره دومره ستره کړي او دومره يې چيږي او بحث او مناقشه په کې کوي چې ګواکې دوی د اسلامي شريعت سره هېڅ مشکل او ستونزه نلري، يوازې د دوی فهم د يو شمېر فقهي احکامو په اړه د امت د اسلافو او يا ديني مراجعو سره توپير لري، د دې کار لپاره هڅه کوي چې په کتابونو کې چېرته هم ناآشنا فتوی يا شاذه نظريه په لاس ورشي، هغه رابرسيره کړي، او په دې ډول په حقيقت کې ځان د التزام له چوکاټه وباسي.

بله پلمه يې دا ده چې د سياسي اسلام په نامه د مسلمانانو په ذهن کې د اسلام سمه بڼه تتوي، وايي چې اسلام خو د څو اخلاقياتو نوم دی، اسلام ډېر سپېڅلی دی، هغه بايد د سياست، اقتصاد او نړيوالو چارو په پليتيو ککړ نشي، په اسلام کې د واکمنۍ تصور، د هر اړخيز نظام تصور او بالآخره د نړۍ د قيادت قضيه ، له دې مخکې هېچا هم په اسلام کې د واکمنۍ خبره نه ده ياده کړې.غواړي پدې ګډو وډو سره د اسلام له دايرې ځان ته د وتلو آسانه لارې او ګودرې پرانيزي.

**لويديځ له چا کار اخلي؟**

د دغه پروسې د توظيف لپاره د مال، جاه، منصب او داسې نورو شهوتونو له هڅولو څخه کار اخلي، او په ټولنه کې يو شمېر هغه انسانان چې د دوی نيغ په نيغه شاګردان پاتې شوي او يا

هم له هغوی څخه تر ډېره اغېزمن دی د روڼ اندو او کارپوهانو په نامه معرفي کړي، چې همدا ډلــه بیا د اسلام او اسلامي احکــامو داســې تعبیرونــه وړاندې کوي چې گــواکې همــدوی د اســلام ســم غمخواره او پــرې دردمــن خلــک دي او هغــه پــه حقیقت کــې د غــربي مشرــوع او پــروژې سره د اسلام د سازش پټه هڅه وي، همدا ډلــه د دې پــر ځای چې عملي دینداری ته خلک راوبلي او یــا پــه خپله په کې التزام موجود وي، هسې تش په نامه په یو شمېر فقهي احکامو د بحثونــو او مناقشــو له لارې داسې ښيي چې گواکې همــدوی پــه دیــن پــوهېږي او د دیــن اصــلي وارثــان دي، پخوانیــو علماوو او کتابونو د دیــن سره یــې ســتر خیانــت کړی دی.او اوسني علماء په هیڅ نه پوهېږي .

دوی سره په حقیقــت کــې پــه دغــو جــزئي اختلافاتو کې خبره نه رالنډیږي، او نه په دلایلو او قناعت خبره سرتــه رســیږي، دوی سره اساســا د قضــاوت معیارونــه جــلا دي، دوی د اســـلامي شریعت د حاکمیت او واکمنــۍ پــه اړه منکــردی، دوی سره د الله او معبود معنا جلا ده ، دوی چې د کوم رب خبره مطرح کوي، هغه یــوازې واعــظ او نصیحت کونکی دی، دوی هغه رب نــه منــي چــې حاکم او قیوم وي او د هغه سره د ټــول انســانیت واک او اختیار وي . د دوی د رب د اختیــار ســاحه ډېره محدوده ده له دې کبله دوی په ټولنه کې یــو نوی تصــور حــاکمول غــواړي، د ژونــد ځــانگړې تگلاره معرفي کوي، دوی د اســلام داســې تصــور وړاندې کوي چې د لویدیځ سره اړخ ولگوي او

لدې کبله که چېرې څوک د اســلام حاکمیــت مني او د شرک او کفر څخه پرتــه نــور گناهونــه کوي هغه مسلمان دی، د هغه سره معاملــه جــلا ده، خو که څوک حاکم رب نه مني، نــو لــه هغــه سره قضیه بیا د عقیدې او باور ده، د هغه سره په جزئیاتو کې خبره کول گټه نلري، هغــه بــه هڅــه کوي چې په جزئیاتو کې د بحــث او مناقشــې لــه لارې خپل اصلي اهداف پټ کړي، هغه پــدې بــاور دی چې د اسلامي ټولنو لپاره د لویدیځ نسخه ښه علاج دی، د لویدیځ عقیده، کلتــور، ارزښــتونه او نظامونه په اسلامي ټولنو کې د بــدلون او تغیــیر اساس گڼي. قرآن د یو شمېر خلکو همدا باور ذکر کوي فرمایي: ( ألم تر آلی الــذین آوتــوا نصــیبامن الکتاب یؤمنون بالجبت والطاغوت ویقولون للذین کفروا هؤلاء آهدی من الذین آمنوا سبیلا) آیا ته نه گورې هغو ته چې د کتاب لږ علم ورکړل شوی پــه جبت او طاغوت ایمان راوړي او وایي چې کــافران له مؤمنانو ښه لارموندونکي دي.

دوی د خپل نظر او فکر لپاره یو شمېر داسې افراد چې دیني علم ته منسوب وي خو د لویــدیځ په لاس جوړ شوو واقعیتونو په وړاندې یې گونډه وهلي وي او داسې انگېري چې اوس نو همدا مــو لار ده ، او له دې پرته بله لار نشته.. دغه د پردیــو په چوپړ کې لگیا ډله علماء دا فکر کوي چې مونږ د اسلامي امت لپاره لــه تنگســیاوو څخــه د وتلــو

لارې برابروو، خـو پـه حقیقـت کـې د لویـدیځې مشـروع لپاره زمینه برابروي. له همدې کبلـه پـه یو اثر کې راغلي دي چې : (ثلاثة یهدمن الدین, زلة العالم, جدال المنافق بالقرأن و الأئمة المضلین) درې ډلې دي چې دین ړنگوي، د عالم ښویېدنه، په قرآن کې د منافق خبرې او مناقشې او گمراه امامان)

د یادولو وړ ده چې کله ناکله دیو شمېر هغو علماوو فتواگانې هم په دې اړه ستونزه راولاړوي چې واقعیتونو، د مستفتي حالاتو او اغراضـو تـه نه گوري او تش د یو شمېر فقهي نصوصو او یـا اقوالو پر بنسټ فتوا ورکوي، ډېـر ځلـه دغـه ډول فتواگانې هم د دغو خلکو تبر ته لاستي اچـوي، د بیلگې په توگه د ښځې ورزش کول، یا د موسیقي د جواز او عدم جواز قضیه او داسې نور.

له دې کبله هرې فتوی ته باید د جزئي فقهي حکم په سترگه ونه کتـل شي بلکـې هغـه بایـد د غربي مشروع د سترو اهدافو په رڼا کـې وڅېـړل شي ، دا خبره په ځانگړې توگه هغو علـماوو تـه متوجه کېږي چې د رخصتونو لار نیسي او په هر څه کې د یسر او سهولت پسې ځي.

**دوهـم: د سیسـتمونو او قوانینـو پـه برخه کې:**

په اسلامي ټولنو باندې د واک ټینگولو لپـاره د لویدیځ بله ستره ستراتیژي، په قانوني، نظـامي او رسنیز ډگرکې د سـیکولر عنـاصرو توظیـف او گمارل دي، په دې اړه لویدیځ یوازې د ا فـرادو پـه گمارلو هم بسیا نه کوي بلکې خورا زیاتـه هڅـه یې دا وي چې په دغو ډگرونو کـې سیسـتمونه او قوانین داسې ترتیب کړي چـې پرتـه لـه سـیکولر عناصرو بل څوک په کـې مخکـې ولاړ نشـــي،له همدې کبله کله یو شـمېر وگـماری چـې پـه پـو هنتونو کې د شرعیاتو پوهنځیود لغوه کولـو اواز اوچت کړي کله بیـا پـه پوهنتونـو کـې دثقافـت مضمون غیر ضروری وبولي ، او نـن د حقوقـو د پوهنځیو نوي او تنکي اسـتاذان پـه ډېـر سرعـت سره یوه او بل هېواد ته استوي، تـر څـو د غـربي قوانینو سره یې بلـد او پـه راتلـونکې کـې یـې د شرعیاتو او اسلامی قوانینو سره د بلـدو قضـاتو ځای ناستی کړی او نور گن پلانونه د اسلام د کـم رنگه کولو لپاره په لاره اچول شوی دی او پـه دې ډول همدا د لویدیځ استعمار هغـه سـتراتیژی وه چې لا تر اوسه هم هغه هېوادونه چې د خپلواکۍ څو لسیزې پرې تېرې شوي خو په دغو برخو کـې د لویدیځ له گروته وتلي نه دي، دا نن چې دلتـه او هلته د نظامي کودتاگانو هڅې کیـږي، د همدغـه ستراتیژۍ تسلسل دی.

دا هغه ډگر دی چې اسلامي خوځښتونو لـه دې سره چې په ولسي سطحه یې خورا زیات کـار کړی، خو په دغو اړخونو کې لا تراوسه هم پـاتې راغلي دي او نتیجه یې د همدغو انقلابونو تسلسل دی.

همدا کار اوس په افغانستان کې روان دی، د افغانستان د اردو جوړښت، رسنیز ډگر او قانوني بنسټونه تر همدې گواښ لاندې دي!

# د مورچل ورځې

رضوان اللّه فیضانی

## اتـــفاق

ذوالجلالـــه مؤمنـــان پـــه اتفـــاق کـــړې
ســـتا ســـپېڅلي بنـــدګان پـــه اتفـــاق کـــړې

چـــې راتـــول د يـــو امـــير پـــه قومنـــده شي
يـــا الله مســـلمانان پـــه اتفـــاق کـــړې

تېـــر تـــاريخ چـــې د اصـــحابو راژونـــدی شي
ټـــول خـــواره واره غازيـــان پـــه اتفـــاق کـــړې

اخـــتلاف لـــه مـــونږه ورک کـــړې نـــور ځښـــتنه
طالبـــان هـــم عالمـــان پـــه اتفـــاق کـــړې

يو د بـل مختـه چـې سـپر کـړو خپـل ځانونـه
عجميـــان او عربـــان پـــه اتفـــاق کـــړې

محبـــت او صـــفا مينـــه درنـــه غـــواړو
زمونږ سپين ږيري او ځوانان پـه اتفـاق کـړې

ډېر ستومان يو نـور مـو وصـل کـړه منـزل تـه
ستر کـاروان مـو هـم ځـاروان پـه اتفـاق کـړې

کـــړه قبـــول د (فيضـــاني) دغـــه ســـوالونه
حـــق پرســـته شـــاعران پـــه اتفـــاق کـــړې

## غزل

قاري ثائب

زغمئ دي نـشي، نـن پـه تـا پسې خبـرې کـوي
بدرنګـه خلـک، ستا ښکلا پسې خبـرې کـوي

زه پرې مئين يم د پتنګ په شان پرې ځان سوځوم
دوی د هـغې شمـعې رڼـا پسې خبـرې کـوي

کلـه هـلمنـد، کلـه زابـل او قـنـدهار يـادوي
کـلـه وياړلي پکـتِـيـا پسې خبـرې کـوي

يرغلـګران يـې پـر شـا وتـنبول، ويـې ځـپـل
اوس يـې پـه کړنـه او ادآء پسې خبـرې کـوي

زه چې دفـاع لـه خپلې خاورې او لـه ننګـه کـوم
ثآئبـه! دوی مـې يـه وفـا پسې خبـرې کـوي

# لکه ورور

سپين کوچی

قدم راسره اخلي په کراره لکه ورور
خولې ستړی،ستومان د ژوند په لاره لکه ورور

د ژوند د قافلې په هر پړاؤ، هره دمه کې
يو څوک مې اوږې سپکې کړي له باره لکه ورور

زه دلته د حالاتو ، ورکو لارو کې راګير يم
خو هلته څوک زړه له انتظاره لکه ورور

هغه مو نن د سرو وينو بخښنه کړي قاتل ته
پر موږ باندې چې ګران ؤ رب لپاره لکه ورور

پخپله د حالاتو سرو غرمو ته وي ولاړ
په ما د مينې سيوری کړي چيناره لکه ورور

د زړه کوڅو کې غلی،غلی وير، غلې سلګی وي
چې څوک مې غلی ځي د زړه له ښاره لکه ورور

زه پروت تېي،تپي يمه زګيروي کړمه،دا ژاړي
يو څوک مې سر ته ناست وي تر سهاره لکه ورور

شيندلی، خور و ور زړه مې راټول شي پرې چې څوک
پر مخ راشي کوچيه سپينه ياره لکه ورور

# دريځ

سميع اللّه تړون

لکه ګوري مچی شات پسې روان دی
دا سړی د سر خيرات پسې روان دی

دا زلمی چې شهيد کيږي او لا خاندي
دا د رب په ملاقات پسې روان دی

د هندو پټکی يې خپو ته راغورزيګي
غزنوي په سومنات پسې روان دی

دا صليب چې نن کوخه په کوخه ګرځي
دا ابليس په ادم ذات پسې روان دی

نو ضرور به خالدي توره شرنګيږي
څوک په لات څوک په منات پسې روان دی

دوه سړي دي يو طاغوت ته غاړيوزي
بل حديث او په ايات پسې روان دی

خوار تړون په دغه دويم سړي پسې دی
ورته وايي مناجات پسې روان دی

# افراط کوونکي هلاك شول!


ليکوال: مصطفى محمد الطحان
ژباړن: حزب الله "ناصح"


د اسلام د اسانۍ څخه دا دی چې د بې ځایه سختي کوونکو متشددینو او هغو کسانو سره مقابله کوي چې غلو او له حد نه تیری کوي . رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي: »هَلَكَ الْمُتَنَطِّعُونَ قَالَهَا ثَلاَثاً «(صحیح مسلم( "افراط کوونکي او غلو کوونکي هلاك شول . او دا خبره یې درې ځله تکرار کړه"

دا هغه ډیر بلیغ او په زړه پورې حدیث دی چې د دې موضوع په اړه ویل شوی دی او غلو کوونکی سړی چې نا څاپه له یو سخت مشکل سره مخامخ کیږي له ټولو نه ډیر ژر له اسلامي شریعت نه اوړي . دا ډول خلك مو ډیر په غربي هیوادونو کې ولیدل لومړی په خپلو ځانونو او نورو باندې د انتهایي سختۍ نه کار اخلي او په پای کې سخت دردوونکي حالت ته رسیږي . العیاذ بالله دا ډول سختي او غلو کوونکي خلك څومره د الله تعالی د بندګانو او بسته ښارونو د هلاکت لامل ګرځیدلي د څومره محنتونو او کړاوونو لامل ګرځیدلي چې ضربې یې نه یواځې دعوت او دعوتګرانو ته رسیدلي بلکې اسلام ، روښانه فکر او د اسلام لوړو لارښوونو ته یې هم داسې ضربې ور رسولي چې الله تعالی پوهیږي چې کله به له منځه ځي.

عائشه رضی الله عنها فرمایي:

»مَا خُيِّرَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فِى أَمْرَيْنِ إِلاَّ أَخَذَ أَيْسَرَهُمَا مَا لَمْ يَكُنْ إِثْمًا فَإِذَا كَانَ إِثْمًا كَانَ أَبْعَدَ النَّاسِ مِنْهُ « (متفق علیه)

"رسول الله صلی الله علیه وسلم ته د دوو کارونو په منځ کې اختیار نه ده ورکړل شوی مګر آسان یې ترې غوره کړی ترڅو به چې د ګناه کار نه وه او که چیرې به ګناه وه بیا به تر ټولو خلکو ډیر ورڅخه لرې وه"

ایا سختي کوونکي له دې وروسته هم ګمان کوي چې دوي نیك کار کوي

هغه انسان چې ټول مشاعر او احساسات یې د اسلام له اسانۍ سره وي او په سلوك او چلند کې د رسول الله صلی الله علیه وسلم عمل پلی کوي ، همدا انسان متفائل او خوشبین دی په خپل ځان او نورو باندې باور لري، کارونو ته په صبر او نرمۍ سره وړاندې کیږي او په قوي عزم سره یې د تحقیق په لټه کې وي . هیڅ ستونزه یې د شکست لامل نه شي جوړیدلی او هیڅ خنډ یې مخه نه شي ډب کولی . څنګه به دا ډول نه وي حال دا چې رسول اکرم صلی الله علیه وسلم د خپل رب نه په حدیث قدسي کې خبر ورکوي فرمایي:

«أَنَا عِنْدَ ظَنِّ عَبْدِي بِي ، إِنْ ظَنَّ خَيْرًا فَلَهُ ، وَإِنْ ظَنَّ شَرًّا فَلَهُ » (مسند احمد)

"زه د خپل بنده د گومان مطابق اوسم (د عقيدې مطابق ورسره چلند کوم) که يې ښه گومان وکړ نو ورته به خير وي او که يې بدگومان وکړ نو ورته به شر وي.

نو ايا په دې ځای کې پرته د نيک گومان نه بل څه روا دي ؟

هغه کسان چې په شك ،ناهيلۍ او بدفالۍ کې ښکيل دي هغوی له بل هر چانه مخکې له خپل ځان سره دښمني کوي په خپلو او د نورو په زړونو کې بدفالي او ناهيلي اچوي ، په خپلو ځانونو هيڅ باور نه لري بلکې د هيڅ کس په اړه ښه گومان نه لري ان تر دې چې د خپل خالق په اړه هم ښه گومان نه لري!!

د مسلمان دعوتگر دنده دا ده چې د خير اثار وپلټي په روزنه کې يې شي او وده ورکړي تر څو يې غالب کړي.

د هر لوی شر په وړاندې هم بايد د نرمۍ او زغم نه کار واخلي د انسان د نفس نه يې ريښې وباسي او په ځای باندې يې د محبت او خير دانې وکري .

رسول اکرم صلی الله عليه وسلم فرمايي:

...«يأَيُّهَا النَّاسُ إِنَّ مِنْكُمْ مُنَفِّرِينَ؛ فَأَيُّكُمْ مَا صَلَّى بِالنَّاسِ فَلْيُوجِزْ، فَإِنَّ فِيهِمُ الْكَبِيرَ وَالضَّعِيفَ وَذَا الْحَاجَةِ» (رواه مسلم ، عن ابی مسعودالانصاری) "ای خلکو ځيني په تاسې کې خلك له دين نه زړه توري کوي . نو څوك چې په تاسې کې خلکو ته لمونځ ورکوي بايد لنډ يې کړي ځکه په ده پسې سپين ږيري ،کمزوري او حاجتمند هم ولاړ دي"

هارون الرشيد ته يو سړی راغی او ورته يې وويل :ای اميرالمؤمنين زه غواړم چې تا ته نصيحت وکړم په هغه کې به کيداي شي څه سخت الفاظ وي هغه بايد تحمل کړې!!

هارون الرشيد ورته وفرمايل : الله تعالی داسې يو کس ته چې له تا نه ډير غوره وه د نرمې خبرې کولو امر کړی په داسې حال کې چې له ما نه هم ډير بدتر انسان ته ليږل شوی وه الله تعالی چې کله خپل نبي موسی او هارون عليهماالسلام فرعون ته ورليږل نو ورته يې وفرمايل:

}فَقُولا لَهُ قَوْلاً لَيِّناً لَعَلَّهُ يَتَذَكَّرُ أَوْ يَخْشَى{ (طه/٤٤)

"فرعون ته نرمه وينا کوئ ، کيداي شي چې پند واخلي او (له ما نه يا له خپل عاقبت نه ) وډارشي"

زمونږ د مجد او عظمت نه ډك تراث کې بې شماره نښې شته چې دا په ډاگه کوي چې اسلام څه ډول غوره طريقه د انساني قضاياوو د علاج او د ټولنې د اصلاح لپاره اختيار کړې ده ډول ډول قضيې يې په څومره نرمۍ او اسانتيا سره حل کړي او ټول ناخوښ اثار يې د ټولنې او غړي له ذهن نه لرې کړي د دې په نتيجه کې گنهگار انسان، د خپل رب هدايت ته تسليم شو او په بل ډول انسان بدل شو په ټولنه کې خير او ښيگڼه خپاره شول .

حاطب بن بلتعه د خپل ځان او اسلامي ټولنې په اړه تيروځي کله چې مسلمانان په غصه کيږي او د جزا ورکولو غوښتونکي کيږي، رسول اکرم صلی الله عليه وسلم په نرمۍ او مهربانۍ سره له هغه سره چلند کوي او براءت يې بيانوي فرمايي:

»لَعَلَّ اللَّهَ تَعَالَى اطَّلَعَ عَلَى أَهْلِ بَدْرٍ ، فَقَالَ : اعْمَلُوا مَا شِئْتُمْ فَقَدْ غَفَرْتُ لَكُمْ « (صحيح البخارى)

"کيداي شي الله تعالی هغو کسانو ته چې په بدر (غزا) کې يې برخه اخيستې د رحمت په نظر کتلي وي او د دوی په اړه يې ويلي وي څه چې غواړئ وې کړئ پرته له څه شك نه ما درته ښښنه کړې"

هغه سړی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم ته راغی او وړانديز يې ورته وکړ چې د زنا اجازه ورکړي . کوم کسان چې حاضر ول هغوی چيغې کړې او د ده وړانديز يې ډير سخت بد کار وګاڼه . خو رسول الله صلی الله عليه وسلم د هغه سره په ډيره نرمۍ او مهربانۍ سره چلند وکړ او ورنه يې وپوښتل :ايا ته دا کار د خپلې خور يا مور يا لور لپاره خوښوې ؟

هغه وويل : هيڅکله نه!

رسول الله صلی الله عليه وسلم ورته فرمايل : همدا ډول يې نور خلك هم نه خوښوي ، بيا يې ورته د خير دعا وکړه د رسول الله صلی الله عليه وسلم له مجلس نه لا نه وه پاځيدلی چې سمې لارې ته برابر شو او زړه يې صفا شو رسول الله صلی الله عليه وسلم يې له زړه نه د شر ريښې راو ويستلې او په ځای يې ورته خير او فضيلت کيښود.

همدا ډول اسلام هره قضيه په ډيره اسانۍ سره حل کړې که څه هم خلکو هغه ډيره سخته ګڼلې وي اسلام د کينې پر ځای مينه کری ، د شر پرځای خير کري، د رذائلو پر ځای فضايل کري ، د بد فالي پر ځای خوشبيني کري ، د سختي پرځای اساني کري ، د زړه تورولو پر ځای بشارت او زيری ورکول کري . الله تعالی فرمايي:

}فَبِمَا رَحْمَةٍ مِنْ اللَّهِ لِنْتَ لَهُمْ وَلَوْ كُنْتَ فَظّاً غَلِيظَ الْقَلْبِ لانْفَضُّوا مِنْ حَوْلِكَ فَاعْفُ عَنْهُمْ وَاسْتَغْفِرْ لَهُمْ وَشَاوِرْهُمْ فِي الأَمْرِ فَإِذَا عَزَمْتَ فَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُتَوَكِّلِينَ{ (آل عمران /۱۵۹)

"نو د خپل رب د رحمت په وجه ورته نرم شوې او که ته بد خولی او سخت زړی وې ، نو ستا له شا او خوا به خواره شوي وو، نو دوی ته عفوه وکړه ،بخښنه ورته وغواړه او په کارونو کې مشوره ورسره کوه، کله دې چې د يو کار عزم وکړ بيا په الله تعالی توکل وکړه ، يقينا چې الله تعالی توکل کوونکي خوښوي"

سرچينه: "د نني مسلمان ځا نګړتياوې" له کتاب څخه

